**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

افریقا د اسیا او اروپا په څیر په خپلو منځونو کې ګډه پوله نلري، او یوازې د سویز په برخه کې د آسیا له لویې وچې سره نښتې ده. د سویز کانال د کیندنې دمخه د افریقا لویه وچه د یوه مثلث په څیر چې راس یې په جنوب کې پروت دی، د آسیا د وچې پورې تړلې وه او د سینا دښته د دواړو وچو ترمنځ ګډه پوله وه. د سویز د کانال ترکیندنې وروسته د افریقا لویه وچه نوره له آسیاسره نښتې نه ده او دیوه ټاپو په څیر د آسیا له لویې وچې څخه جلا شوې ده.

افریقا نه یواځې تر شمالي او جنوبي او همدارنګه تر ختیځو او لویدیځو نیمو کرو پورې پراخوالی لري بلکې د افریقا لویه وچه اروپا ته هم ډیره نږدې پرته ده او د شمال لویدیځ لوري یې د جبل الطارق د آبنا (د ۱۳ کیلومترو په واټن) په وسیله له اروپا څخه جلا شوې ده.

## د دويم لوست د تدريس د لارښوونې پلان

**د تدريس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافيه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشريح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | طبيعي جغرافيا، الف: غرونه | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افريقا له طبيعي جوړښت په تيره بيا له، غرونو سره اشنايي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د افريقا د غرونو له موقعيت سره اشناشي.<br>ـ د افريقا د لويې وچې له لوړو سطحو او لويې صحرا سره اشنا شي.<br>ـ د غرونو موقعيت د نقشې پرمخ وښيي.<br>ـ د افريقا د لويې وچې سپينه نقشه ډکه او بشپړه کړي. | |
| ۳ – د تدريس ميتودونه | توضيحي، مباحثوي، گروپي کار، پوښتنې او ځوابونه | |
| ٤ – درسي او مرستندويه درسي سامانونه او لوازم | د افريقا د لويې وچې او نړۍ نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشير، جغرافيايي کره، د امکان په صورت کې جغرافيايي ويډيويي او ټلويزيوني فلمونه، کمپيوټري سي ډي گانې او انټرنت. | |
| ٥- د ارزونې طريقې: | شفاهي، کتبي (لنډې او څلور ځوابه پوښتنې، له تصويرونو او نقشې څخه گټه اخيستنه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولگي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | لومړنی کړنې: د احوال پوښتنه، د ټولگي تنظيم او حاضري اخيستل. | ۱۰ دقيقې |
| | د انگيزې رامنځته کول (هڅونه): د تختې پرمخ د نوي لوست د عنوان او د لوست د پاڼې شميره ليکل او هغې ته د زده کوونکو پام راگرځول، همدغه راز د افريقا د لويې وچې نقشې او اړوندو تصويرونو ته د زده کوونکو پام راگرځول. | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د افریقا د لویې وچې د مشهورو غرونو نومونه د تختې پرمخ ولیکئ.<br>- د غرونو موقعیت د نقشې پرمخ وښیئ.<br>- د غرونو اهمیت او پر اقلیم، د اوبو پر زیرمو، اقتصاد او نورو باندې یې اغیزې توضیح کړئ.<br>- د غرونو اړونده پوښتنې دې وکړي.<br>- د زده کوونکو ستونزې دې حل او پوښتنوته دې ځواب ورکړي.<br>- زده کوونکي دې په ګروپونو وویشي او د ټولګي دننه فعالیت دې هغوئ ته روښانه کړي.<br>- له ګروپونو څخه دې کتنه وکړي.<br>- د لوست وروستنۍ پوښتنې دې وکړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دې ورته په ګوته کړي. | - د ښاغلي ښوونکي معلوماتو ته دې غوږ ونیسي.<br>- په نقشه کې دې دقت وکړي او د تصویرونو په هکله دې نظر څرګند کړي.<br>- ستونزمن لغاتونه او پوښتنې دې له ښاغلي ښوونکي وپوښتي.<br>- د ښاغلي ښوونکي لارښوونو ته دې غوږ ونیسي.<br>- په ګروپونو دې وویشل شي.<br>- له یوبل سره دې په ګروپي کارونو کې بحث او مشوره وکړي او همدارنګه د لوست وروستیو پوښتنوته دې ځواب ورکړي.<br>- له ټولګي نه بهر فعالیت دې سرته ورسوي. | ۳۵ |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱ـ د ګینې دخلیج په شمال لویدیځ کې تر ټولو لوړ غر د (فوتاجالون) د غرونو د لړۍ په نوم یادیږي.

۲ـ د اطلس غرونه دافریقا په شمال لویدیځ کې موقعیت لري.

۳ـ د افریقا د لویې وچې په ختیځ کې د حبشې لوړې سطحې په نوم د غرونو لړۍ موقعیت لري.

٤ـ د تبستي غرونه د افریقا په شمال کې په دښتي سیمو کې موقعیت لري.

**په ټولګي کې دننه فعالیت:**

زده کوونکي دې د غرونو د موقعیت او اهمیت په هکله یو له بله سره بحث او خبرې وکړي او پایله دې خپلو ټولګیوالوته وړاندې کړي.

**له ټولګي څخه بهر فعالیت:**

زده کوونکي دې د امکان په صورت کې د افریقا د لویې وچې سپینه نقشه فوتوکاپي او یا په خپلو کتابچو کې رسم او بشپړه کړي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د افریقا د لویې وچې طبیعي جغرافیا (غرونه)

د افریقا لویه وچه د طبیعي ویش له امله په دوه بیلابیلو برخو ویشي:

لوړې سطحې (فلات) او دښتې.

د افریقا مرکزي او جنوبي برخې ډیرې لوړې سطحې دي چې منځنی لوړوالی یې نږدې ۱۰۰۰ متره دې.

د افریقا دښته (صحرا)چې تقریبي مرکز یې د شمالي عرض البلد له ٥ درجو څخه پیل کیږي او په هغې کې د لوړو سطحو په پرتله د ځمکپوهنې او اوبو د بریدونو لړې اغیزې تر سترګو کیږي. د فلات یا لوړو سطحو په دننه کې لوی سیندونه بهیږي چې د هریوه له حوزې څخه لوړې ژورې رامنځته شوې دي. له آسیا څخه وروسته د غرونو تر ټولو لوړې څوکې په افریقا کې موقعیت لري. همدغه راز د افریقا لویه وچه له آسیا وروسته د نورو لویو وچو په پرتله په منځنی توګه د سمندرونو له سطحې څخه لوړه پرته ده.

**د دریم لوست د تدریس د لارښوونې پلان**

**د تدریس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | سیندونه | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له اوبیزو حوزو سره اشنايي.<br>جزئي موخې:<br>ـ دافریقاد لویې وچې له اوبیزو حوزو سره اشناشي.<br>ـ د نیل له سیندسره اشناشي اوپه نقشه کې یې وښیي.<br>ـ د نیل سیند پر سر د جوړ شویو بندونو سره اشنا شي.<br>ـ د نیل سیند موقعیت او دهغې پر سر جوړ شوي بندونه په نقشه کې وښیي.<br>ـ د نیل سیند اقتصادي ارزښت بیان کړي. | |
| ۳ – د تدریس میتودونه | توضیحي، ګروپي کار، پوښتنې او ځوابونه او عملي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د افریقا د لویې وچې یا د نړۍ طبیعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیويي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي ګانې او انټرنت. | |
| ٥- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (عملي کار، لنډ ځوابه پوښتنې، د فعالیتونو ارزونه ) | |
| ٦ – په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنی کړنې: د احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضرۍ کنټرول او له ټولګي څخه بهر فعالیت کتنه. | ۱۰ دقیقې |
| | د انګیزې رامنځته کول (هڅونه): اوبیزه حوزه څه ته وايي؟<br>د ټولګي مخې ته د افریقا د سیندونو د نقشې او د امکان په صورت کې د ځینو تصویرونو او عکسونو ځړول، د تختې پر مخ د نوي لوست د عنوان لیکل او د کتاب نقشې او تصویرونو ته د زده کوونکو پام راګرځول. | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د لوست د عنوان لیکل، او پوښتنې کول.<br>- په چوپه او کراره توګه د مطالعې سپارښتنه.<br>- د افریقا د لویې وچې د اوبیزو حوزو نومونه د تختې پرمخ ولیکئ او توضیح یې کړئ.<br>- د حوزې د اړونده سیندونو نومونه واخلئ او د نقشې پرمخ یې وښیئ.<br>- د نیل سیند او د هغه اقتصادي ارزښت روښانه کړئ.<br>- د لوست د اصلي ټکو او لغاتونو مانا کول.<br>- په ګروپونو باندې د زده کوونکو ویش.<br>- له ګروپونو څخه کتنه.<br>- د لوست د پای پوښتنې وکړئ.<br>- د فعالیتونو او پوښتنو ارزونه.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت سپارښتنه. | - نوی لوست په کراره توګه ولولي.<br>- د ښاغلي ښوونکي معلوماتو ته دقت وکړي.<br>- د ستونزمنو لغاتونو پوښتنه وکړي.<br>- پوښتنوته ځواب ورکړي.<br>- په ګروپي کارونوکې فعاله ونډه واخلي.<br>- د خپل بحث پایلې وړاندې کړي.<br>- د لوست وروستیو پوښتنو ته ځواب ورکړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دې سرته ورسوي. | ۳۵ |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱ـ هغه ښارونه چې د نیل سیند ختیځو غاړوته موقعیت لري، دا دي: اسوان، قاهره او پورت سعید.

هغه ښارونه چې د نیل سیند لویدیځو غاړوته موقعیت لري، دا دي: ازیوت (اسیوط)، الفیوم او اسکندریه.

۲ـ د نیل د سیند له پاسه بندونه جوړ شوي دي چې د هغې له بریښنا څخه ګټه اخیستل کیږي او د کرنیزو ځمکو په خړوبولو کې ورڅخه ګټه اخیستل کیږي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د افريقا سيندونه: د افريقا سيندونه د نورو لويو وچو برعکس يوه اوږده لاره وهي، په هرځاى کې چې له کلکو ځمکو سره لګيږي، د ځړوبي په څير له لوړې سطحې څخه ښکته راتوييږي.

دا حالت په فلات يا لوړو سيمو کې چې د سيند د حوزې او مصب ترمنځ د لوړوالي توپير ډيروي، لوى ځړوبي رامنځته کړى دې کار د لويې وچې په دننه کې د بيړۍ چلولو کار ستونزمن کړى دى.

## د څلورم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د کانگو حوزه | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د کانگو له حوزې سره اشنايي او د افریقا د اوبیزې حوزې اغیزې.<br>جزیي موخې:<br>ـ د کانگو، نایجریا، زامبزي او سنیگال له سیندونو سره اشنا شي.<br>ـ د کانگو سیمې له ځنگلونو سره اشناشي.<br>ـ د کانگو، نایجیریا، زامبزي او سنیگال سیندونه د نقشې پرمخ وښيي.<br>ـ د دغه سیندونو اقتصادي ارزښت بیان کړي. | |
| ۳ – د تدریس میتودونه | د لوست توضیح، گروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د افریقا د لویې وچې یا د نړۍ طبیعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي گانې او انټرنټ. | |
| ٥- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې او په ټولگي کې دننه فعالیت ارزونه) او عملي کار. | |
| ٦ – په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنی کړنې: د احوال پوښتنه، د ټولگي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل او له ټولگي څخه د بهر فعالیت کتنه او د نوي لوست سره د پخواني لوست د اړیکو ټینگول. | ۱۰ دقیقې |
| | د انگیزې رامنځته کول (هڅونه): د لوست د پیل هڅوونکې پوښتنه دې وکړي چې ولې د کانگو د سیمې حوزې ته شنه افریقا وایي؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د کانګو، نایجریا، زامبزي او سنیګال سیندونه د نقشې پرمخ وښيي.<br>- ددغه سیندونو اقتصادي ارزښت توضیح کړئ.<br>- د اړونده سیمو پر اقلیم باندې ددغه سیندونو اغیزه توضیح کړئ.<br>- زده کوونکي پر ګروپونو باندې وویشئ او د هغوی د ټولګي دننه فعالیت روښانه کړئ.<br>- د زده کوونکو ستونزې حلوي او پوښتنې ځوابوي.<br>- پوښتنې کوي.<br>- زده کوونکو ته له ټولګي څخه بهرفعالیت په ګوته کوي. | - نقشې ته پاملرنه وکړي.<br>- د ټولګي په دننه فعالیت کې فعاله ونډه واخلي او یو له بله سره په ګروپونو کې مرسته وکړي.<br>- د پوښتنو ځوابونه ووایي او خپلې ستونزې وړاندې او پوښتنې وکړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت سرته ورسوي. | ۳۵ |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

د ټولګي دننه فعالیت په درسي کتاب کې روښانه شوي دي.

**دپوښتنو ځوابونه:**

۱ـ د افریقا د لویې وچې سیندونه د لنده بل، شینوالي، سمسورتیا او کرنیزو حاصلاتو سبب شوي دي. همدغه راز د نوموړو سیندونو شتون په خپل شاوخواکې د ګڼ شمیر نفوسو د ځای پرځای کیدنې لامل شوي دي، چې دا پخپله د تاریخ په اوږدو کې د بیلابیلو تمدنونو د رامنځته کیدو لامل ګڼل کیږي.

۲ـ د کانګو له سیند څخه د بیړۍ چلولو او بریښنا د تولید لپاره ګټه اخیستل کیږي.

۳ـ د سنیګال دره د اوسیدنې له ځانګړو مرکزونو څخه ده او د سنیګال بندر جوړیدنه په دغه دره کې د یادونې وړ دی.

٤ـ د نایجیر سیند د ګینې او عاج ساحل د هیوادونو د سمسورتیا سبب ګرځیدلی دی.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د کانګو سیند:

د کانګو سیند چې د اوبو د حجم له پلوه په افریقا کې تر ټولو لوی سیند دی، تقریباً **۳۰۰۰** کیلومتره یې د بیړۍ چلولو لپاره برابر دی او په مرکزي افریقا کې د ترانسپورت زیاتره چارې د کانګو د سیند له لارې سرته رسیږي.

د دوو هیوادونو کینشاسا ـ کانګو او برازاویل ـ کانګو خپل نومونه له همدې سیند څخه ترلاسه کړي دي. د کانګو سیند مصب په ۱٤۸۲ م کال د یوه پرتګالي سمندر ګرځیدونکي له خوا کشف شوی دی.

## د پنځم لوست د تدريس د لارښوونې پلان

**د تدريس موده: ( يو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافيه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشريح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | جهيلونه | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پاى کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افريقا د لويې وچې له مشهورو جهيلونو سره اشنايي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د افريقا د جهيلونو له موقعيت سره اشناشي.<br>ـ د افريقا د لويې وچې تر ټولو لوى او تر ټولو کوچني جهيل سره اشنايي.<br>ـ د جهيلونو موقعيت د نقشې پرمخ وښيي.<br>ـ د افريقا د لويې وچې لپاره د جهيلونو ګټې بيان کړي. | |
| ۳ – د تدريس ميتودونه | د لوست توضيح، ګروپي کار او پوښتنې او ځوابونه | |
| ٤ – درسي او مرستندويه درسي سامانونه او لوازم | د افريقا د لويې وچې يا د نړۍ طبيعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشير، جغرافيايي کره، د امکان په صورت کې جغرافيايي ويډيويي او ټلويزيوني فلمونه، کمپيوټري سي ډي ګانې او انترنت. | |
| ٥- د ارزونې طريقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه او څلور ځوابه پوښتنې او د کړنو ارزونه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | لومړنۍ کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولګي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او ټولګي څخه د بهر فعاليت کتنه. | ۱۰ دقيقې |
| | د انګيزې رامنځته کول (هڅونه): د لوست د پيل پوښتنه دې وشي: د جهيلونو په هکله څه معلومات لرئ او د جهيلونو څخه کومه ګټه اخيستل کيږي؟ | |

| وخت په دقیقو | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ | - د جهیلونو په هکله د نظر څرګندونه.<br>- نقشې ته پاملرنه وکړي او د ښاغلي ښوونکي لارښوونې په ځیر او غور سره واوري.<br>- مهم ټکي له ځانه سره ولیکي.<br>- د ټولګي دننه فعالیت کې فعاله ونډه واخلي او د جهیلونو د اقتصادي ارزښت په هکله دې بحث وکړئ او د خپل بحث پایلې دې ټولګیوالوته وړاندې کړي.<br>- پوښتنوته دې ځواب ورکړي.<br>- پوښتنې دې وکړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دې سرته ورسوي. | - د جهیل د مفهوم په هکله د پوښتنې کول.<br>- جهیلونه د نقشې پرمخ ښیي او هغه توضیح کوي.<br>- له جهیلونو څخه څه ګټه اخیستل کیږي، بحث وکړئ.<br>- زده‌کوونکي په ګروپونو ویشي او د ټولګي دننه فعالیت یې په ګوته کوي.<br>- د زده کوونکو ستونزې حلوي او پوښتنې ځوابوي.<br>- پوښتنې کوي.<br>- زده کوونکو ته له ټولګي څخه بهر فعالیت روښانه کوي. |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**د ټولګي دننه فعالیت :** له ځینو جهیلونو څخه د بیړۍ چلولو، کب نیونې، د سیلانیانو لپاره د تفریح ځایونو او د کرنیزه ځمکو د خړوبولو لپاره اقتصادي ګټې اخیستل کیږي.

۱ـ د کامپلا ښار چې د یوګندا هیواد مرکز دی د ویکتوریا دجهیل په شمالي څنډه کې موقعیت لري.

۲ـ په افریقا کې د جهیلونو شتو ن د لنده بل او سمسورتیا لامل دی او په ځینو حالتونو کې له هغې څخه د بیړۍ چلولو، کب نیونې او سیلانیانو لپاره هم ګټه اخیستل کیږي.

۳ـ د بوتسوانا په هیواد کې.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د افریقا جهیلونه:

د فلات (لوړې سطحې) ځینې ژورو، د اوبو دننني حوزې رامنځته کړي دي. د نوموړو حوزو په دننه کې د اوبو جریان سیندونو ته نه رسیږي، جهیلونه او باتلاقونه رامنځته کوي. د مثال په توگه په مرکزي افریقا کې د چاد جهیل او د بوتسوانا په شمال برخه کې د اوکاوانگو *Okavango* باتلاقونه د اوبو د کورنیو حوزو غوره بیلگې دي.

د وکتوریا جهیل هم د افریقا په ختیځو لوړو کې د ماتې درې د دوو برخو ترمنځ پروت دې، ډیر ژوروالی نه لري او په نړۍ کې د خوږو اوبو غټ جهیل شمیرل کیږي.

په ماته دره کې نور لوی جهیلونه هم موقعیت لري چې د بیلگې په توگه کولای شو د تانگانیکاد جهیل نوم یاد کړو، نوموړی جهیل په نړۍ کې تر ټولو اوږد او د خوږو اوبو ژور جهیل دې. د ماتې درې نور لوی جهیلونه دادي: (نیاسا) جهیل، د رودولف جهیل او البرت جهیل.

د افریقا له جهیلونو څخه په پراخه کچه د بیړۍ چلولو لپاره گټه اخیستل کیږي.

## د شپږم لوست د تدريس د لارښوونې پلان

**د تدريس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافيه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشريح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د افريقا سمندرګي | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افريقا د لويې وچې له سمندرګيو سره اشنايي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د مديترانې سمندرګي له موقعيت او اهميت سره اشناشي.<br>ـ د سره سمندرګي له موقعيت او اهميت سره اشنايي.<br>ـ د سمندرګيو موقعيت دې د نقشې پرمخ وښيي.<br>ـ د سمندرګيو اقتصادي ارزښت دې بيان کړي. | |
| ۳ – د تدريس ميتودونه | د لوست توضيح، ګروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندويه درسي سامانونه او لوازم | د افريقا د لويې وچې يا د نړۍ طبيعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشير، جغرافيايي کره، د امکان په صورت کې جغرافيايي ويډيويي او ټلويزيوني فلمونه، کمپيوټري سي ډي ګانې او انټرنت. | |
| ۵- د ارزونې طريقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه او څلور ځوابه پوښتنې او د کړنو ارزونه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولګي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | لومړنۍ کړنې: د ټولګي تنظيم، د حاضرۍ او ټولګي څخه بهر فعاليت کتنه. | ۱۰ دقيقې |
| | د انګيزې رامنځته کول (هڅونه): په کتاب کې د مديترانې د سمندرګي تصويرته د زده کوونکو پام را اړول، له زده کوونکو څخه بايد وپوښتل شي چې په لومړي تصوير کې څه شی وينئ؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د سمندرګي د مفهوم په هکله د پوښتنې کول.<br>- د زده کوونکو د نظرونو له اوریدلو وروسته سمندرګی تعریف کړئ.<br>- سمندرګی د نقشو پرمخ وښيئ او د هغې په هکله معلومات ورکړئ.<br>- په ټولګي کې دننه فعالیت د سرته رسولو لپاره زده‌کوونکي په ګروپونو وویشئ او د هغوئ دندې په ګوته کړئ.<br>- د لوست په هکله پوښتنې وکړئ.<br>- د زده کوونکو پوښتنې ځواب او ستونزې حل کړئ.<br>- زده کوونکو ته له ټولګي څخه بهرفعالیت روښانه کړئ. | - د سمندرګیو په هکله د نظر ونو څرګندونه.<br>- د ښوونکي معلوماتو ته دې پاملرنه وکړي.<br>- په ځیر سره دې نقشې ته وګوري او هغه دې ولولي.<br>- په کتاب کې دې د لوست اړونده تصویرونه په ځیر سره وګوري.<br>- د ټولګي په فعالیت کې دې فعاله ونډه واخلي.<br>- پوښتنو ته دې ځواب ووایي.<br>- پوښتنې دې وکړي.<br>- له ټولګي څخه بهر دنده دې سرته ورسوي. | ۳۵ |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**د ټولګي دننه فعالیت :** له سمندرګیو څخه د اوبو د لارو (بیړۍ چلولو) او کب نیولو لپاره اقتصادي ګټه اخیستل کیږي.

**دپوښتنوځوابونه:**

۱ـ د مدیترانې سمندرګی د افریقا د لویې وچې په شمال کې موقعیت لري.

۲ـ د سویز کانال په وسیله.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د مدیترانې سمندرگی:**

د مدیترانې سمندرگی د افریقا د لویې وچې په شمال کې موقعیت لري چې د گاونډیو هیوادونو پر اقلیم باندې ډیره اغیزه کوي او په نوموړو هیوادونو کې د مدیترانه یي اقلیم سبب گرځي. همدغه راز د مدیترانې له سمندرگي څخه د تگ راتگ لپاره هم گټه اخیستل کیږي چې د افریقایي هیوادونو په اقتصاد کې ځانگړی ارزښت لري. د مدیترانې د سمندرگي څنډو په زړه پورې توریستي ځایونه رامنځته کړي دي چې داهم د مدیترانې د سمندرگي پر څنډو دپرتو هیوادونو په اقتصاد کې بې اغیزې نه دي.

**سور (احمر)سمندرگی:**

همدغه راز د افریقا د لویې وچې په ختیځ کې سور سمندرگی پروت دې چې د سویز کانال په وسیله د مدیترانې له سمندرگي سره یوځای کیږي او د تجارت لپاره اسانتیاوې برابروي. د همدې سمندرگیو او اړونده آبنا وو له امله افریقا له آسیا او اروپا سره تړل شوې او ددې لویو وچو هیوادونه کولای شي چې خپلې سوداگریزې اړیکې د اوبو له لارې پیاوړې کړي.

## د اووم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

د تدریس موده: ( یو درسي ساعت )

مضمون: جغرافیه

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | خلیجونه | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له غوره خلیجونو سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د افریقا د لویې وچې د خیلجونو له موقعیت سره اشناشي.<br>ـ دافریقا د لویې وچې د خلیجونو په اهمیت پوه شي.<br>ـ د نقشې پر مخ خلیجونه وښیي.<br>ـ د خلیجونو اقتصادي ارزښت بیان کړي. | |
| ۳ – د تدریس میتودونه | د لوست توضیح، ګروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د افریقا د لویې وچې یا د نړۍ طبیعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي د لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي ګانې او انټرنت. | |
| ۵- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې او د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنی کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولګي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او له ټولګي څخه د بهر فعالیت کتنه. | ۱۰ دقیقې |
| | د انګیزې رامنځته کول (هڅونه): هڅوونکې پوښتنه دې د لوست په پیل کې وشي:<br>د افریقا د لویې وچې په شاوخوا کې کوم خلیجونه پراته دي؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د مشهورو خلیجونو نومونه دې د تختې پرمخ ولیکي او د نقشې پرمخ دې د هغوئ موقعیت وښیي.<br>- د افریقا دلویې وچې د خلیجونو اهمیت دې روښانه کړي.<br>- زده کوونکي دې د ټولګي دننه کړنو لپاره په ګروپونو وویشي.<br>- د لوست په هکله پوښتنې دې وکړي.<br>- د زده کوونکو پوښتنې دې ځواب کړي.<br>- زده کوونکو ته دې له ټولګي څخه بهر فعالیت وسپاري. | - زده کوونکي نقشې ته پام کوي چې د خلیجونو له موقعیت سره اشناشي.<br>- د ښاغلي ښوونکي لارښوونې دې په ځیر سره واوري.<br>- د افریقا د لویې وچې په طبیعي نقشه کې دې د خلیجونو نومونه په ګوته کړي.<br>- پوښتنوته دې ځواب ورکړي.<br>- د لوست په هکله دې پوښتنې وکړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دې سرته ورسوي. | ۳۵ |

**۸ د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**په ټولګي کې دننه فعالیت:**

زده کوونکي دې په کتاب کې له ورکړل شوې دندې سره سم د ټولګي دننه فعالیت سرته ورسوي.

**دپوښتنوځوابونه:**

۱ـ د عدن خلیج، فول خلیج او سویز خلیج.

۲ـ په شمال خیتځ کې.

۳ـ د ګیني خلیج، لودریس خلیج او سنت هلن خلیج.

٤ـ تر ټولو لوی خلیج ګینه دی اوتر ټولو کوچنی خلیج دسویز خلیج دی.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د ګینې خلیج:
د ګینې خلیج د افریقا د لویې وچې له لویو خلیجونو څخه دې او د اتلانتیک د پراخه اوبو یوه کتله ده چې د افریقا د لویې وچې په ختیځه څنډه کې رامنځته شوې ده.
د بنین خلیج په شمال لویدیځ او د بوني خلیج په شمال ختیځ کې د ګینې د خلیج له برخو څخه دي.
د ګینې په خلیج کې ډیر سیندونه تویږي چې له هغې ډلې څخه د نایجیر، ولتا او سنیګال سیندونه د یادونې وړ دي.
په ځانګړې توګه د نایجر سیند له میلیونو کلونو راهیسې ژوندي (ارګانیک) مواد له ځانه سره د ګینې په خلیج کې غورځوي چې په پای کې د اومو نفتو سبب ګرځي، له همدې امله نوموړې سیمه د نړۍ له غوره او لویو نفتي سیمو څخه شمیرل کیږي.
هغه هیوادونه چې د ګینې خلیج سره ګډه پوله لري دادي:
د عاج ساحل، ګانا، توګو، بنین، نایجریا، کامرون، استوایي ګینه، سایوتومه او پرنسیپي او ګابون.
په عمومي توګه ځینې خلیج لویو بندري ښارونو درلودونکي دي. د اوبو له لارې د توکو لیږد د همدې خلیج له لارې سرته رسیږي. د سیلانیانو لپاره یې ښه سواحل رامنځته کړي د کب نیولو له بابته ډیر ارزښت لري او د ګاونډیو سیمو په لنده بل کې هم ښه رول لوبوي.

## د اتم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: ( یو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافیه**

<table>
<tr><th>د مطالبو عنوانونه</th><th colspan="2">د مطالبو تشریح</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">د افریقا اقلیم</td></tr>
<tr><td>۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له اقلیم سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>ـ په افریقا کې د اقلیم له ډولونو سره اشناشي.<br>ـ دافریقا لویې وچې له ډیرو تودو او سړو سیمو سره اشناشي.<br>ـ د افریقا په وچه کې له اورښت سره اشناشي.<br>ـ د اورښت د ویش له نقشې څخه ګټه واخلي.</td></tr>
<tr><td>۳ – د تدریس میتودونه</td><td colspan="2">د لوست توضیح، ګروپي کار</td></tr>
<tr><td>٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم</td><td colspan="2">د افریقا د لویې وچې یا د نړۍ طبیعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي ګانې او انټرنت.</td></tr>
<tr><td>۵- د ارزونې طریقې:</td><td colspan="2">شفاهي، کتبي (لنډځوابه او څلور ځوابه پوښتنې او د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦ – په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>لومړنۍ کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولګي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او له ټولګي څخه بهر فعالیت کتنه.</td><td rowspan="2">۱۰<br>دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انګیزې رامنځته کول (هڅونه): د لوست د پیل هڅوونکې پوښتنه دې وشي (د افریقا لویه وچه ولې د بیلابیلو اقلیمونو درلودونکې ده؟).</td></tr>
</table>

| وخت په دقيقې | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | ۷ د ښوونکي د تدريس فعاليتونه (د مفاهيمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ | - د اقليم په هکله دې خپل نظر څرګند کړي.<br>- د ښوونکي معلوماتوته دې غوږ ونيسي.<br>- په ګروپونو کې دې تنظيم شي او د ټولګي په کړنو کې دې فعاله ونډه واخلي.<br>- پوښتنوته دې ځواب ورکړي.<br>- د لوست ستونزې او پوښتنې دې له خپل ښوونکي سره شريکي کړي.<br>- له ټولګي څخه په بهر فعاليت دې ځان پوه کړي او سرته دې ورسوي. | - د اقليم د اصطلاح په هکله دې پوښتنه وکړي او د زده کوونکو د ځواب تر اوريدلو وروسته دې اقليم تعريف کړي.<br>- د طول البلد او عرض البلد کرښو له مخې دې د افريقا د لويې وچې موقعيت په نقشه کې په ګوته کړي او د اقليم په هکله دې عمومي معلومات ورکړي.<br>- زده‌کوونکي دې په ګروپونو وويشي او د ټولګي دننه فعاليت دې ورته روښانه کړي.<br>- د لوست پوښتنې دې طرح کړي.<br>- د زده کوونکو پوښتنو ته دې ځواب ووايي.<br>- زده کوونکو ته دې له ټولګي څخه بهر فعاليت روښانه او د سرته رسولو لپاره دې زده کوونکو ته دنده ورکړي. |

**۸ د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

د ټولګي دننه فعاليت : په عمومي توګه افريقا په نړۍ کې تر استراليا وروسته ډېره توده لويه وچه ده. د اورښت کچه يې لږه ده او د استوا له کرښې څخه د شمال او جنوب پر لوري د اورښت کچه نوره هم کميږي. د افريقا په ختيځ کې د هند سمندر نامنظم مونسوني بادونه، په ځينو سيمو کې منظم تجارتي بادونه او په صحرا کې د خمسين په نوم وچ بادونه ترسترګو کيږي.

**دپوښتنوځوابونه:**

۱ـ واوره په لوړو غرنيو سيمو کې اوري.

۲ـ د عزيزيه په نوم تر ټولو توده سيمه د ليبيا په شمال لويديځ کې موقعيت لري.

له ټولګي څخه بهر فعاليت ځواب:

که چيري د استوا له کرښې څخه د افريقا شمال او لويديځ لوري ته ولاړشو نو په خپل تګ لوري کې به په ترتيب سره د هوا له لاندې ډولونو سره مخامخ شوو: استوايي(تل شنې ځنګلي باراني سيمې)، تحت استوايي(د ځنګلونو باراني سيمې، د ځنګلونو لږې باراني سيمې)، لنده سوانا، وچه سوانا، ستپ، دښتې او مديترانه يي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د افریقا اقلیم:**

د هرې سیمې د اقلیم د مطالعې لپاره لازمه ده چې د هغې سیمې په اقلیم کې موجودو بیلابیلو لاملونو ته پاملرنه وشي چې د هغې سیمې د اقلیم ریښتینی حالت روښانه شي.

هغه جغرافیایي لاملونه(عوامل) چې د افریقا پر اقلیم باندې اغیزه کوي دادي:

۱ـ جغرافیایي موقعیت او د استوا له کرښې څخه د سیمو واټن.

۲ـ طبیعي موقعیت، د سمندر څخه د نږدیوالي او لریوالي له مخې.

۳ـ د هوایي جریانونو او فشاري مرکزونو څرنګوالی.

٤ـ تاوده او ساړه سمندري جریانونه.

٥ـ د هوا فشار.

٦ـ لوړې او ژورې.

۷ـ تودوخه.

۸ـ کلنی منځنی لنده بل.

په عمومي توګه کولای شو چې د افریقا اوبه او هوا (اقلیم په دریو برخو وویشو:

ـ استوایي اوبه او هوا چې د ټول کال په اوږدو کې ډیره تودوخه او لنده بل دهغې له ځانګړتیاوو څخه دې.

ـ حاره یي اوبه او هوا، چې دا ډول اقلیم د سرطان او جدې کرښو دواړو خواووته لیدل کیږي، په هره کچه چې د استوا کرښې ته نږدې شوو نو اورښت ډیریږي.

ـ مدیترانه یي اوبه او هوا، چې د افریقا په شمال او جنوب لویدیځ کې ترسترګو کیږي. په دې ډول اقلیم کې اوړی تود او ژمی یې معتدل وي.

**د نهم لوست د تدریس د لارښوونې پلان**

**د تدریس موده: ( یو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافیه**

<table>
<tr><th>د مطالبو عنوانونه</th><th colspan="2">د مطالبو تشریح</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">بیلابیلې اقلیمي سیمې</td></tr>
<tr><td>۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>- د افریقا د لویې وچې د بیلابیلو اقلیمي سیمو سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>- د افریقا په وچه کې د اقلیم له ډولونو سره اشنایي.<br>- د افریقا د لویې وچې په بیلابیلو اقلیمي سیمو کې د نباتاتو له ډولونو سره اشنایي.<br>- په افریقا کې د بیلابیلو اقلیمونو له ځانگړتیاوو سره اشنایي.<br>- بیلابیلې اقلیمي سیمې دې په نقشه کې وښیي.</td></tr>
<tr><td>۳ – د تدریس میتودونه</td><td colspan="2">د لوست توضیح، گروپي کار</td></tr>
<tr><td>٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم</td><td colspan="2">د افریقا د لویې وچې یا د نړۍ طبیعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي گانې او انترنت.</td></tr>
<tr><td>٥- د ارزونې طریقې:</td><td colspan="2">شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه، سمې او ناسمې او خانه خالي پوښتنې...) او عملي کار</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦ – په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>لومړنۍ کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولگي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او ټولگي څخه بهر فعالیت کتنه.</td><td rowspan="2">۱۰<br>دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انگیزې رامنځته کول (هڅونه): د لوست په کتاب کې تصویرونو ته د زده کوونکو د پاملرنې راگرځول او د هغوی د نظر غوښتنه.</td></tr>
</table>

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
| --- | --- | --- |
| - د بیلابیلو اقلیمي سیمو نومونه دې د تختې پرمخ ولیکي او په نقشو کې دې وښیئ.<br>- د افریقا بیلابیلې اقلیمي سیمې او د نوموړو سیمو د نباتاتو ډولونه دې توضیح کړي.<br>- زده کوونکي دې په ګروپونو وویشي او د ټولګي دننه فعالیت دې ورته په ګوته کړي.<br>- د لوست په اړه پوښتنې دې وکړي.<br>- د زده کوونکو ستونزې دې حل او پوښتنې دې ځواب کړي.<br>- زده کوونکو ته دې له ټولګي څخه بهر دنده وسپاري. | - تختې او نقشې ته پاملرنه.<br>- د ښوونکي معلوماتو ته دې په ځیر سره غوږ ونیسي.<br>- د ټولګي دننه فعالیت سرته رسوي.<br>- پوښتنوته ځواب ورکوي.<br>- پوښتنې کوي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت سرته رسوي. | ۳۵ |

**۸ د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

- د استوایي اقلیم ځانګړتیاوې: داستوایي اقلیمي سیمې ډیرې تودې او پرله پسې بارانونه لري. په دې ډول سیمو کې د لوړو ونو چتر ډوله استوایي ځنګلونه ډیر وي.
- دښتي سیمې وچ او صحراي اقلیم او لنډ مهاله اوربښتونه لري چې پراخه شګلنې اوبې ونو سیمې په کې شتون لري.

په ټولګي کې دننه فعالیت دې د لارښوونې سره سم سرته ورسیږي.

**دپوښتنو ځوابونه:**

۱ـ د ستپ اقلیم سیمه: دا ډول سیمه د حاره او لویې صحرا د سیمو ترمنځ پرته ده چې نسبتاً توده او باراني هوا لري او د مالدارانو لپاره ښه څرځایونه برابروي.

۲ـ دصحراي سیمې اقلیم: دا ډول سیمې وچه او دښتي هوا لري او د کرنې لپاره اسانتیاوې نه برابروي.

۳ـ دمدیترانه یي سیمې اقلیم: هغه ډول اقلیمي سیمې دي چې اوړی یې تود او وچ، او ژمی یې معتدل او باراني وي. غوره پیداوار یې انګور، د ستروس کورنۍ میوې(لیمو، مالټې، سنترې...)، خرما او ګني دي.

له ټولګي څخه بهر فعالیت دې د لارښوونې سره سم سرته ورسیږي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د (اوبو او هوا) او نباتاتو اړيکې:
طبيعي سيمې د نباتاتو د ودې يا پوښښ او د افريقا د اوبو او هوا له مخې په څو سيمو ويشل کيږي.
۱ـ د استوايي باراني ځنگلونو اقليم:
په عمومي توگه په مرکزي او لويديځه افريقا کې د اوربښت کچه د نورې افريقا په پرتله ډيره ده. په دې سيمو کې د لنده بل ډيروالی او د تودوخی دوامداره زياتوالی د استوايي باراني ځنگلونو د رامنځته کيدو سبب گرځي.

۲ـ د استوايي وښو (علفزار) او حاره سوانا سيمو اقليم:
په افريقا کې د استوايي وښو او حاره سوانا اقليم سيمې د باراني ځنگلونو سيمو په پرتله ډيرې پراخه دي. ددې ډول اقليم تر ټولو غوره ځانگړتياوې د لوند او وچ فصل له پرله پسې توب څخه عبارت دي. پدې سيمه کې د نباتاتو تر ټولو جگ استوايي واښه ليدل کيږي چې په ځينو ځايونو کې په يوازيتوب سره د ځمکې مخ پوښې، خو په ډيرو ځايونو کې له خورو ورو ونو سره يوځای وې.
د لندې سوانا په سيمو کې کرنه غوره رول لري او د پنبې، ځمکنيو بادامو (ممپليو) او تنباکو په څير پيداوار په نوموړو سيمو کې لاس ته راځي.

۳ـ د دښتي بوټو اقليم:
دښتي اقليمونه د استوايي وښو ډوله او ستپ سيمو په شمال او جنوب لويديځ کې ځای لري. د افريقا لويه صحرا چې د نړۍ تر ټولو لويه دښته ده، د افريقا په ټوله شمالي ساحه کې د اطلس له سمندر څخه تر سره سمندرگي پورې پراخه شوې ده.

٤ـ نيمه حاره او مديترانه يي اقليمونه:
د مديترانې ساحلي سيمې د افريقا په شمال لويديځ کې پرتې دي. په مديترانه يي سيمو کې نباتات خپل ژوند له تود او وچ اوړي سره عياروي. د نوموړو نباتاتو څخه ډير شمير اغزی لرونکي دي او د لږو اوبو د لاسه ورکولو له امله اغزی (ستنې) ته ورته پاڼې لري.

**د لسم لوست د تدریس د لارښوونې پلان**

**د تدریس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | سیاسي جغرافیه | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له سیاسي جغرافیې سره آشنایي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د افریقا د لویې وچې لـه خپلواکـو هیوادونـو او د هغـوی لـه مرکزونـو سـره آشناشي.<br>ـ د ښکیلاک دورې له پایلو او موخو سره آشناشي.<br>ـ د افریقا د لویې وچې هیوادونه او د هغو مرکزونه په نقشه کې وښیي. | |
| ۳ – د تدریس میتودونه | د لوست توضیح، انفرادي او ګروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د افریقا د لویې وچې سیاسي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتـاب، تـوره تختـه، تباشـیر، جغرافیـایي کـره، د امکـان پـه صـورت کـې جغرافیـایي ویډیويي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي ګانې او انټرنت. | |
| ٥- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې او د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنی کړنې: د احوال پوښتنه، پـه ټـولګي کـې د نظـم برابـرول، د حاضرۍ او له ټولګي څخه د بهر فعالیت کتنه | ۱۰ دقیقې |
| | د انګیزې رامنځته کول (هڅونـه): د افریقـا د لـویې وچـې سیاسـي نقشې ته د زده کوونکو د پام اړونه. | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د تیر لوست څخه یادونه وکړئ.<br>- د افریقا د لویې وچې خپلواک هیوادونه، لـه مرکزونـو سـره په نقشه کې وښیي.<br>- د افریقا د لویې وچې د سیاسي جغرافیې په هکله معلومات ورکړي.<br>- د لوست د متن د ننه پوښتنې وکړي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي دننـه کړنـو د سـرته رسـولو لپـاره پـه ګروپونو وویشي.<br>- د لوست د پای پوښتنې وکړي.<br>- د زده کوونکو پوښتنې ځواب کړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت زده کوونکوته روښانه کړي. | - د ښـوونکي معلومـاتو تـه دې غـوږ ونیسي.<br>- نقشې ته دې پاملرنه وکړي.<br>- د لوست د ننه پوښـتنوته دې ځـواب ووایي.<br>- د لوســت د پــای پوښــتنو تــه دې ځواب ووایي.<br>- د ټـولګي دننــه فعالیــت دې ســرته ورسوي.<br>- پوښــتنې او ســتونزې دې وړانــدې کړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دې سرته ورسوي. | ۳۵ |

**۸ د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

د متن دننه پوښتنې:

د افریقا د لویې وچې د نسبتاً لږ پرمختګ لامل د هغې وچې په طبیعي او سیاسي اوضاع کې پټ دې او پـه ځـانګړې توګه دښکیلاک دوره د پرمختګ په وړاندې ستر خنډ ګڼل کیږي.

**د لوست وروستی پوښتنې:**

۱ـ په جنوبي افریقا کې په ۱۹۹٤ م کال توکم پالنه (نژا دي تبعیض )پای ته ورسیده.

۲ـ ۵۳ خپلواکه هیوادونه لري.

۳ـ د افریقایانو د لږ پرمختګ اصلی لامل، د ځینو لودیځو ښکیلاکي هیوادونو ښکیلاک دی.

په ۱۹۰۱ م کال افریقا کې ٤ خپلواکه هیوادونه (حبشه، لایبریا، مصر او جنوبي افریقا) وو.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**نننۍ افریقا:**

د افریقا نننۍ سیاسي نقشه، د څو ښکیلاکي اروپایي هیوادونو ترمنځ د ویش پایله ده.
ددې وچې نقشه په زیاتره توګه د طبیعي کرښو سره تړاونه لري، په دې معنا چې هغه افریقایان چې په یوه ژبه خبرې کوي، په ځینوحالاتو کې په یوه هیواد کې استوګنه نه کوي او په څو هیوادونو کې خواره شوي دي.
ددې وچې په ځینو هیوادونو کې داسې خلک شته چې په څو بیلابیلو ژبو خبرې کوي. ددې لامل دادې چې اروپایي ښکیلاکي هیوادونو طبیعي پولو، قومي او ژبني جوړښت ته د پاملرنې پرته د هیوادنو ترمنځ پولې رسم کړي دي، چې دغه ښکیلاکي پولې د افریقایي هیوادونو لپاره تر خپلواکۍ وروسته د ډیرو ستونزو سبب شوي دي.
په افریقا کې په ظاهري توګه د ښکیلاکي واکمنیو د پای ته رسیدنې وروسته ددې وچې په هیوادونو کې په لسګونو کودتاوې رامنځته شوې دي او د بهرنۍ پارونو او لاس وهنو له امله ددې وچې د هیوادونو په حکومتونو کې ډیره ګډوډي تر سترګو کیږي. د زیاتره افریقایي هیوادونو حکومتونه د خلکو له ملاتړ پرته واک ته رسیدلي دي.

## د یوولسم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیه**

<table>
<tr><th>د مطالبو عنوانونه</th><th colspan="2">د مطالبو تشریح</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">بشري جغرافیه</td></tr>
<tr><td>۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له بشري جغرافیې سره آشنایي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له نفوسو سره آشناشي.<br>ـ د افریقا د لویې وچې د نفوسو له جغرافیایي ویش سره آشناشي.<br>ـ د افریقا د لویې وچې له قومي جوړښت او نژادي ګروپونو سره آشناشي.<br>ـ د افریقا د قومونو او نفوسو ویش د نقشې پرمخ وښیي.</td></tr>
<tr><td>۳ – د تدریس میتودونه</td><td colspan="2">د لوست توضیح، انفرادي او ګروپي کار</td></tr>
<tr><td>٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم</td><td colspan="2">د افریقا د لویې وچې بشري نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي ګانې او انټرنت.</td></tr>
<tr><td>٥- د ارزونې طریقې:</td><td colspan="2">شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې او د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦ – په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>لومړنۍ کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولګي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او ټولګي څخه د بهر فعالیت کتنه.</td><td rowspan="2">۱۰<br>دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انګیزې رامنځته کول (هڅونه): د افریقا د لویې وچې د نفوسو د ویش نقشې ته دی پام وشي او د لوست د پیل پوښتنه دی وشي:<br>ـ د افریقا په کومو سیمو کې د نفوسو ګڼوالی ډیر دی او ولې؟</td></tr>
</table>

| وخت په دقيقې | د زده کوونکو د زده کړې فعاليتونه | ۷ د ښوونکي د تدريس فعاليتونه (د مفاهيمو او موضوعگانو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ | - د ښوونکي معلوماتو ته دې غوږ ونيسي.<br>- نقشه دې مطالعه کړي.<br>- د لوست د نه متن پوښتنو ته دې ځواب ووايي.<br>- د ټولگي دننه فعاليت دې سرته ورسوي.<br>- خپلې ستونزې دې حل او پوښتنې دې وکړي.<br>- د لوست د پای پوښتنو ته دې ځواب ووايي.<br>- له ټولگي څخه بهر فعاليت دې په گوته او سرته ورسوي. | - د تير لوست څخه يادونه وکړي.<br>- نژادي گروپونه او د نفوسو گڼوالی د نقشې پرمخ وښيي.<br>- د لوست د متن په هکله دې پوښتنې وکړي.<br>- زده‌کوونکي دې د ټولگي دننه فعاليت د سرته رسولو لپاره په گروپونو وويشي.<br>- د لوست د پای پوښتنې دې طرحه کړي.<br>- د زده کوونکو پوښتنې دې ځواب کړي.<br>- له ټولگي څخه بهر فعاليت دې زده کوونکو ته روښانه کړي. |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**د ټولگي دننه فعاليت:**

د افريقا د لويې وچې د خلکو د کډوالی لاملونه (عوامل) عبارت دې له : سياسي، اقتصادي، مذهبي، طبيعي او نورو څخه.

**دپوښتنوځوابونه:**

۱ـ د افريقا په شمال کې عرب توکمه خلك ژوند کوي چې په عربي ژبه خبرې کوي.

۲ـ د افريقا په شمال لوديځ کې بربر قبايل ژوند کوي چې رنگونه يې سپين او په شکل کې د ايتاليا او هسپانيا له خلکو سره ورته والی لري.

۳ـ د افريقا په مرکزي، جنوبي او لويې صحرا په سيمو کې تور پوټکي ژوند کوي چې د ونې، څيرې، رنگ او پوستکي له پلوه يو تربله توپير لري او په دوه برخو يعنې سوداني او بنتونگرو باندې ويشل شوي دي.

٤ـ اروپايان د خپلو سياسي او اقتصادي گټو د بشپړه کولو لپاره افريقا ته کډه شوي دي. په لومړي سر کې يې په جنوبي افريقا او زمبابوې کې ژوند کاوه او وروسته کينيا،يوگندا او د افريقا نورو هيوادونو ته وخوځيدل.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د افریقا لویه وچه د نژادي ډولونو او سیاسي ویش له پلوه د ځانګړي ارزښت درلودونکې ده. ددې وچې اوسیدونکي د بیلابیلو نژادونو، له بوشمن څخه تر بربرو، له عربو څخه تر پیګمیانو او له سپین پوټکو څخه تر تور پوټکو پورې، جوړ دي.
د افریقا د لویې وچې د نفوسو د کموالي په هکله ډیر لاملونه شته چې د نوموړو لاملونو څخه ځینې طبیعي او ځینې نورې اقتصادي او ټولنیز دي. دلویې صحرا او دښتې او نیمه دښتې سیمو شته والی نشي کولای چې د ډیرو نفوسو لپاره زمینه برابره کړي. استوایي سیمه د لوړ لنده بل او تودوخې له امله د ځنګلونو درلودونکې ده، د بې حاصله خاورې او د ناروغیو خپریدنې په ګډه د انسان واکمني پر چاپیریال کمه کړې او د نفوسو د ډیروالي خنډ ګرځیدلي دي. د غلامۍ لانجې هم د افریقا د نفوسو د لږوالي لامل دی چې د امریکایي او اروپایي هیوادونو پر لوري د لسګونو میلیونو کسانو د کډوالۍ سبب شوی دی.
تورپوستکي په افریقا کې تر ټولو لوی قومي توکم دي چې نږدې د افریقا د نفوسو په سلوکې اویا جوړوي او په څلورو ځانګړو ډلو بانتو، نیلوتو، پیګمو او بوشمنو باندې ویشل کیږي. همدارنګه عرب، اروپایان او آسیایان هم په دې وچه کې ژوند کوي.

## د دوولسم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د افریقا د دین او ژبې په هکله څه معلومات لرئ؟ | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا له دین او ژبې سره آشنا شي.<br>جزئي موخې:<br>ـ په افریقا کې د اسلام د مقدس دین له پیروانو سره آشنايي.<br>ـ د افریقا په وچه کې له نورو دینونو سره اشنايي.<br>ـ د افریقا له رسمي او سیمه ییزو ژبو سره آشنايي.<br>ـ د افریقا د لویې وچې اسلامي هیوادونه په نقشه کې وښيي. | |
| ۳ – د تدریس میتودونه | د لوست توضیح، انفرادي او ګروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د افریقا د لویې وچې بشري نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي ګانې او انټرنت. | |
| ٥- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې، له نقشې څخه ګټه اخیستنه او د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنۍ کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولګي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او د ټولګي څخه د بهر فعالیت کتنه. | ۱۰ دقیقې |
| | د انګیزې رامنځته کول (هڅونه): د زده کوونکو پاملرنه دې د دینونو نقشې ته واړول شي. | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د افریقا د لویې وچې د دینونو او ژبو په هکله دې معلومات ورکړي.<br>- د بیلابیلو دینونو سیمې دې د نقشې پرمخ وښيي.<br>- د لوست متن دننه پوښتنې دی طرحه او ځواب کړي.<br>- زده کوونکي دې د ټولګي د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګروپونو وویشي او دهغوئ دندې دې روښانه کړي.<br>- د لوست د پاې پوښتنې دې وکړي.<br>- د زده کوونکو پوښتنوته دې ځواب ووايي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دی زده کوونکو ته روښانه کړي. | - له ټولګي څخه د بهر فعالیت پایلې دې ښاغلي ښوونکي ته وښيي.<br>- د ښاغلي ښوونکي لارښوونو ته دې غوږ ونیسي.<br>- د لوست دننه پوښتنوته دې ځواب ووايي.<br>- د ټولګي دننه فعالیت د سرته رسولو لپاره دې په ګروپونو کې کاري ونډه واخلي.<br>- د لوست د پای پوښتنو ته دې ځواب ووايي.<br>- پوښتنې او ستونزې دې وړاندې کړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دې له ځانه سره ولیکي. | ۳۵ |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**د متن دننه دپوښتنوځوابونه:**

- په افریقا کې د اسلام دمقدس دین او عیسویت پیروان لری.

**د لوست د پای پوښتنو ځوابونه:**

۱ـ د افریقا په شمال کې زیاتره مسلمانان ژوند کوي.

۲ـ د افریقا په لویه وچه کې د ۲۳ هیوادونو خلک د اسلام د مقدس دین پیروان دي.

۳ـ څرنګه چې د افریقایي هیوادونو زیاتره برخه د اروپایانو تر ښکیلاک لاندې وه، نو له همدې امله یې هماغه ښکیلاکي بهرنی ژبه خپله رسمي ژبه منلې ده.

٤ـ د سامي، ساحلي یا سواحلي او نورو ژبوډله سیمه ییزې ژبې او انګلیسي، فرانسوي، پرتګالي او نورې، اروپایي ژبې دي.

۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:

دین او ژبه:

له مذهبي پلوه د افریقا لویه وچه د بیلابیلو مذهبونو او دینونو د خپریدو لپاره مناسب ځای دی. په اوسني وخت کښی د بیلابیلو بدوي مذهبونو سربیره (چې د تورپوټکو قبیلو لپاره ځانګړي دي) داسلام مقدس دین په افریقا کی ډیر پیروان لری او همد ار نګه په افریقا کې د عیسوی دین یو شمیر پیروان هم شته چې د مسلمانانو په منځ کښی د تسنن مذهب او د عیسویانو په منځ کې د کاتولیک او پروتستانت مذهبونو پراختیا موندلې ده.

د افریقا په وچه کې له ۸۰۰ څخه زیاتې سیمه ییزې ژبې کارول کیږي. زیاتره افریقایان په یوه سیمه ییزه ژبه خبرې کوي او دویمه ژبه د بهرنیو خلکو سره د اړیکو لپاره کاروي. د مثال په توګه دختیځې افریقا زیاتره خلك له ساحلي ژبې څخه د دویمې ژبې په توګه ګټه اخلي، ځینې خلك انګلیسي او فرانسوي ژبه هم کاروي.

# د دیارلسم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیه**

<table>
<tr><th>د مطالبو عنوانونه</th><th colspan="2">د مطالبو تشریح</th></tr>
<tr><td>۱- د لوست موضوع</td><td colspan="2">اقتصادي جغرافیه</td></tr>
<tr><td>۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له اقتصادي جغرافیې سره اشنايي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له کرنې سره آشنا شي.<br>ـ د افریقا د لویې وچې له مالدارۍ سره آشناشي.<br>ـ د کرنیزو تصویرونو محتوا بیان کړي.<br>ـ د مالدارۍ د تصویرونو محتوا بیان کړي.</td></tr>
<tr><td>۳ – د تدریس میتودونه</td><td colspan="2">د لوست توضیح، انفرادي او گروپي کار</td></tr>
<tr><td>٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم</td><td colspan="2">د افریقا د لویې وچې اقتصادي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیويي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي گانې او انترنت.</td></tr>
<tr><td>٥- د ارزونې طریقې:</td><td colspan="2">شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې، له نقشې څخه گټه اخیستنه او د فعالیتونو ارزونه ) او عملي کار</td></tr>
<tr><td rowspan="2">٦ – په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>لومړنۍ کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولگي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او له ټولگي څخه د بهر فعالیت کتنه.</td><td rowspan="2">۱۰<br>دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انگیزې رامنځته کول (هڅونه): د زده کوونکو پاملرنه يو په زړه پورې اقتصادي تصویرته واړوي.</td></tr>
</table>

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - اقتصادي جغرافیه دې تعریف کړي.<br>- د افریقا د لویې وچې د کرنې او مالدارۍ په هکله دې معلومات ورکړي او د زده کوونکو نظرونه دې د لوست د تصویرونو په هکله واوري.<br>- له اقتصادي نقشې څخه دې ګټه واخلي.<br>- د لوست د ننه پوښتنې دې وکړي او د هغې ځواب دې هم ووايي.<br>- زده کوونکي دې پر ګروپونو وویشي او د هغوئ دندې دې ځانګړې کړي.<br>- د لوست د پای پوښتنې دې وړاندې کړي.<br>- د زده کوونکو پوښتنې دې ځواب کړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دې زده کوونکو ته ورکړي. | - د ښوونکي معلوماتو ته دې غوږ ونیسي.<br>- په کتاب کې د لوست اړوندو تصویرونو په هکله دې بحث وکړئ.<br>- د لوست دننه پوښتنوته دې ځواب ووايي.<br>- په ګروپونو کې دې کار وکړي.<br>- خپلې پوښتنې او ستونزې دې طرحه کړي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دې ولیکي. | ۳۵ |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**دټولګي دننه فعالیت:**

په عمومي توګه د افریقا لویه وچه مخ پرودې ده او هغې د کمې ودې او پرمختګ لاملونه کولای شو په نابرابرو طبیعي حالتونو او د ښکیلاک په تاریخچه کې پیداکړو.

**د پوښتونو ځوابونه:**

۱ـ د افریقا د لویې وچې اقتصادي حالت بیلابیلې بڼې لري چې له ټولو ساده اقتصادي دندې څخه تر پرمختللو اقتصادي کړنو پورې په نوموړې وچې کې پیداکولای شو.

۲ـ که څه هم په عمومي توګه د افریقا اقلیم د حیواناتو د روزنې لپاره مساعد نه دي خو بیاهم د پسونو او وزو روزنې ډېره وده کړې ده. همدغه راز د افریقا په شمال لویدیځ کې د کبانو ښکار د یادونې وړ دی.

۳ـ د افریقا د لویې وچې وحشي حیوانات عبارت دي له:

غرنۍ وزې، کرګدن، د اوبو اسونه، فیل، زرافه، ګوره خر، داړونکي حیوانات لکه زمری، پړانګ او لیوه.

**د ټولګي څخه بهر فعالیت ځواب:**

د افریقا د لویې وچې مدیترانه یي پیداوار عبارت دي له: زیتون، لیمو، غنمو، اوربشو، جوارو او انګورو څخه.

هوکې! په افغانستان کې مدیترانه یي اقلیم شته. په ننګرهار کې.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

کرنه په افریقا کې د بنسټ له مخې ژوند دلومړنیوا اړتیاوو دپوره کولو لپاره د کرنیـزو پیـداوارو تولیـد او د لګـښت لپاره تولیددي.
د جنوبي افریقا پرته د افریقا په نورو ټولو هیوادونو کې د فعال نفوس زیاتره برخه په کرنیزو چارو کې بوختـه ده. د هغوی ژوند د ځمکې او اوبو سره، چې له هغې څخه خوراکي توکي تولیدوي، تړاو لري.
د افریقا په زیاتره هیوادونو کې کرنه اوس هم په پخوانی بڼه سرته رسیږي، له همدې امله د افریقا نامناسبې خـاورې ته په پاملرنې سره، افریقایي بزګران باید د خوراکي توکو د تولید لپاره ډیرې ستونزې وګالي.
په ځینو سیمو کې ځینې نباتات کرل کیږي چې په ځـانګړي ډول د صـادراتو لپـاره کـارول کیـږي. دا ډول نباتـات عبارت دي له پنبې، ځمکنې بادام (ممپلیو) کاکائو، قهوې او غوړ بوټي څخه.
د بومیانو یا د افریقا د اصلي اوسیدونکو په پرتله اروپایي بزګران هم د جنوبي افریقا په څیر پـه ځینـو هیوادونـو کـې ډیرې کرنیزې ځمکې او امکانات لري. لوی ځمکـه والـ د کورنیـو سـتونزو سـربیره د خـرڅلاو د بـازار د مونـدلو لپاره، یو له بل سره په سیالۍ هم اخته دي. په کرنیزو پیـداوارو کـې غلـه لـومړی ځـای لـري. د اروپـایي او آسـیایي کهوالو په مرسته د میوو د باغونو رامنځته کیدلو و هم ډیر ارزښت پیداکړی دی.
د حیواناتو روزنه ددې سیمې د اقتصاد له لومړنیو سرچینو څخه ده، دا کار د ښکیلاک له وختـه راهیـسې اوس هـم بشپړه ارزښت لري. د مالدارۍ ارزښت له کرنې څخه کم نه دې او د هغې پیداوار هـم د کرنـې لـه پیـداوارو سـره نږدې برابر دی. د جنوبي افریقا په زیاتره سیمو کې د حیواناتو د روزنـې امکـان شـته دی. پـه جنـوبي افریقـا کـې د پسونو روزنه، په تیره بیا د مرینوس پسونو روزنه چې د خورا ښو وړیو درلودونکي دي په نړۍ کې لـومړی ځـای او ځانګړی ارزښت لري.

## د څوارلسم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: ( یو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | کانونه او صنایع | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له اقتصادي جغرافیې (کانونو او صنایعو) سره اشناشي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د افریقا د لویې وچې د کانونو له ډولونو سره آشناشي.<br>ـ د افریقا د لویې وچې د صنایعو له ډولونو سره اشناشي.<br>ـ د غوره کانونو سیمې د نقشې پرمخ وښیي.<br>ـ د غوره صنایعو سیمې د نقشې پرمخ وښیي. | |
| ۳ – د تدریس میتودونه | د لوست توضیح، انفرادي او گروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د افریقا د لویې وچې اقتصادي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي گانې او انترنت. | |
| ٥- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې، له نقشې څخه گټه اخیستنه او د فعالیتونو ارزونه ) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنی کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولگي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او ټولگي څخه د بهر فعالیت کتنه.<br>د انگیزې رامنځته کول (هڅونه): د افریقا اقتصادي نقشې ته د زده کوونکو پام اړونه او لاندې پوښتنه کول:<br>ـ د افریقا په کومو سیمو کې کوم کاني توکي او صنعتي پیداوار پیداکیږي؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - د نقشې له مخې دې د افریقا د لویې وچې د کانونو او صنایعو په هکله معلومات ورکړل شي.<br>- مشهورې صنعتي او کاني سیمې دې د نقشې پرمخ وښودل شي.<br>- د لوست دننه تصویرونو په هکله دې له زده کوونکو څخه نظر وغوښتل شي.<br>- زده کوونکي دې د ټولګي دننه فعالیت لپاره په بیلابیلو ګروپونو وویشل شي.<br>- د لوست پوښتنې دې طرحه شي، د زده کوونکو ستونزې دې حل او پوښتنې دې ځواب شي.<br>- زده کوونکو ته دې د ټولګي بهر دنده وسپارل شي. | - د ښوونکي لارښوونې ته دې غوږ ونیسي.<br>- د افریقا نقشه دې مطالعه کړي.<br>- د لوست د تصویرونو په هکله دې نظر ورکړي.<br>- په ګروپونو کې دې د ټولګي دننه فعالیت سرته ورسوي او له ګروپونو سره دې مرسته وکړي.<br>- پوښتنو ته دې ځواب ورکړي.<br>- د لوست پوښتنې او ستونزې دې له ښوونکي سره شریکې کړي.<br>- له ټولګي څخه بهر دنده دې له ځان سره ولیکي. | ۳۵ |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

۱ـ د نیل، زامبزي، ولتا او نورو سیندونو له پاسه د برېښنا بندونه جوړ شوي دي.

۲ـ د افریقا شمال تر ډیرې اندازې د نفتو او ګازو درلودونکې دې او جنوبي افریقا د الماسو، سرو زرو، ډبرو سکرو، یورانیمو، کرومو او منګنیز درلودونکې ده.

۳ـ په زایر او زمبابوې کې مس ډېر پیداکیږي.

٤ـ د اوسپنې کانونه په لایبریا، جنوبي افریقا، او موریتانیا کې شته.

۵ـ د افریقا کانونه عبارت دي له: یورانیمو، ډبروسکرو، نفتو، ګازو، اوسپنې، مسو، سرو زرو، الماسو او کرومو څخه.

**له ټولګي څخه بهر فعالیت ځواب:**

۱ـ یورانیم په نایجریا، نامیبیا، ګابون او جنوبي افریقا کې پیداکیږي.

۲ـ په عمومي توګه نفت د افریقا د لویې وچې په شمال کې پیداکیږي.

۳ـ قاهره، الجزیره، کینشاسا، کپ ټاون او دوربان د افریقې د لویې وچې صنعتي سیمې دي.

٤ـ تونس،مراکش،کینیا، مصر او جنوبي افریقا د افریقا توریستي هیوادونه دي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

کاني منابع:

په وروستيو کلونو کې افريقا د کاني توکو د توليد له امله ورځ په ورځ زياتيدونکی ارزښت پيداکړی دی. دکانې پيداوار و ستره برخه بهرته په تيره بيا اروپا، او امريکا ته صادريږي.

افريقا د فلزاتو، قيمتي ډبرو، مسو، قلعي او فسفاتو د توليد له امله ځانګړی ارزښت لري.

کانګو، روديشيا، د جنوبي افريقا د ګينې ساحلي هيوادونه، جنوبي افريقا، مراکش، الجزاير او تونس د کاني توليد اتو اصلي سيمې دي.

ليبيا او نايجريا د نړيوالي په کچه کې د نفتو له عمده توليدونکو هيوادونو څخه دي. د ګانګو سيمه د کاني توکو له بابته د ځمکې پرمخ تر ټولو ډکه سيمه ګڼل کيږي. د کانګو سيمه د الماسو او کوبالټ د توليد له امله ځانګړی ارزښت لري.

په لوديځه افريقا کې د سرو زرو، الماسو او منګنيز کانونه ډير پيداکيږي. ختيځه افريقا د تانګانيکا پرته چې د الماسو کانونه لري نور هيوادونه يې د کاني توکو د پيداوارو له مخې دومره ارزښت نه لري.

**د (پنځلسم) لوست د تدریس د لارښوونې پلان**

**د تدریس موده: ( یو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | مواصلاتي جغرافیه | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له مواصلاتي لارو سره اشناشي.<br>جزئي موخې:<br>ـ د افریقا د لویې وچې له وچو لارو او اوسپنې له کرښو سره آشناشي.<br>ـ د لیږد را لیږد له پخوانیو ډولونو سره اشناشي.<br>ـ د افریقا د لویې وچې له هوایي لیږد ـ رالیږد سره اشناشي. | |
| ۳ – د تدریس میتودونه | د لوست توضیح، انفرادي او گروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د افریقا د لویې وچې یا د نړۍ مواصلاتي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي گانې او انترنت. | |
| ٥- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې، له نقشې څخه کار اخیستل او د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنی کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولگي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او ټولگي څخه د بهر فعالیت کتنه. | ۱۰ دقیقې |
| | د انگیزې رامنځته کول (هڅونه):<br>د لوست اړوند یوه تصویر ته د زده کوونکو د پام راگرځول. | |

| وخت په دقیقې | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعگانو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ | - د ښوونکي لارښوونې ته دې غوږ ونیسي.<br>- نقشې ته دې پاملرنه وکړي او هغه دې په ځیر سره مطالعه کړي.<br>- د لوست د تصویرونو په هکله دې له ښاغلي ښوونکي سره بحث وکړي.<br>- په گروپي کار کې دې برخه واخلي.<br>- د لوست پوښتنوته دې ځواب ورکړي، او خپلې ستونزې دې له ښاغلي ښوونکي سره شریکې کړي.<br>- له ټولگي څخه بهر دنده دې سرته ورسوي. | - د مواصلاتي جغرافیې تعریفول.<br>- د لیرد ولو ـ د پخوانیو لارو، وچو لارو، د اوسپنې کرښو او هوایي ډگرونو د ډولونو توضیح کول.<br>- د نقشې پرمخ د مشهورو لارو ښودنه.<br>- د لوست د تصویرونو په هکله له زده کوونکو سره بحث.<br>- په ټولگي کې د فعالیت د سرته رسولو لپاره د زده کوونکو ویشل.<br>- د لوست پوښتنې طرحه او ځواب ورکړل شي.<br>- زده کوونکو ته دې له ټولگي څخه بهر دنده وسپارل شي. |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**په ټولگي کې ددننه فعالیت ځواب:**

د مواصلاتو او لیږد ـ رالیږد لومړني شکلونه: له اوښ، خره او انسان څخه د شیانو او کالیو دلیږدـ رالیږد لپاره کار اخیستل.

د مواصلاتو او لیږدـ رالیږد پرمختللی شکل: له موټرو، د اوسپنې له کرښو، هوایي کرښو او سمندري لارو څخه عبارت دي.

**د پوښتنو ځوابونه:**

۱ـ د اوسپنې کرښو په مراکش، تونس، الجزایر او مصر کې پراختیا موندلې ده.

۲ـ د لیږدـ رالیږد لومړنی شکل: د لیږدـ رالیږد لپاره له اوښ، خره او انسان څخه گټه اخیستنه.

له ټولگي څخه بهر فعالیت ځواب:

ډیرو استوایي ځنگلونو، چټکو دښتي بادونو، باتلاقونو او دښتو په افریقا کې د مواصلاتو او لارو لپاره خنډونه او ستونزې رامنځته کړی دي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د افریقا په لویه وچه کې د اوسپنې کرښې:
د اوسپنې کرښو د افریقا د لویې وچې په ځینو هیوادونو کې ښه پراختیا موندلې ده. د ښکیلاک په دوره کې ځینو ښکیلاکګرو هیوادونو د صنعتي کیدلو لپاره اروپا ته د اومو توکو په وړلو کې هڅه وکړه چې ځینې ښارونه د اوسپنې د کرښو له لارې د ساحلي بندري ښارونو سره ونښلوي. دبیلګې په توګه بریتانوي سوداګرو په ۱۸م پیړۍ کې له ساحلي هیوادونو سره خپله سوداګري پیل کړه.
په ۱۹۸۳ م کال کې بریتانیې د خپلې اغیزې لمنه د لودیځې ماتې دري تر دننه پورې پراخه کړه.
داسیمه په نوی کینیا او اوګندا ورګډېږي او ډیر ژرېې له مومباسا څخه د ویکتوریا جهیل ته د اوسپنې کرښه وغځوله. په ۱۹۰۰ میلادي کال د اوسپنې نوموړې کرښه لوړو ځمکوته هم ورسیده. د اوسپنې د کرښې د جوړلو د مرکزونو ترڅنګ د نایروبي ښار رامنځته شو.
د مومباسا د اوسپنې کرښه د نایروبي له لارې له کامپالا سره چې، د اوګندا د هیواد مرکز دې، نښلول کیږي.
همدغه راز په افریقایي هیوادونو کې د اوسپنې نورې لارې هم جوړې شوي دي چې له نوموړو څخه د عاج ساحل هیواد او د ولتا هیواد د اوسپنې کرښه د ابیجان او اواګادوګو د ښارونو ترمنځ د یادولو وړده. دنایجریا د هیواد لوی ښارونه هم د اوسپنې د کرښو له لارې یو تربله نښلول شوي دي او د همدې کرښو د لارې له بندري ښارونو سره اړیکي لري.

**د شپاړسم لوست د تدريس د لارښوونې پلان**

**د تدريس موده: ( يو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافيه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشريح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د اوبو له لارې ليږد- راليږد | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کوونکو څخه هيله کيږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>- د افريقا په لويه وچه کې د اوبو له لارې ليږد- راليږد سره اشنايي.<br>جزئي موخې:<br>- د افريقا د لويې وچې له آبنا وو او کانالونو سره اشنايي.<br>- د سمندري ترانسپورت سره اشناشي.<br>- د افريقا د لويې وچې مشهور بندري ښارونه د نقشې پرمخ وښيي. | |
| ۳ – د تدريس ميتودونه | د لوست توضيح، انفرادي او گروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندويه درسي سامانونه او لوازم | د افريقا د لويې وچې او يا د نړۍ مواصلاتي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشير، جغرافيايي کره، د امکان په صورت کې جغرافيايي ويډيويي او ټلويزيوني فلمونه، کمپيوټري سي ډي گانې او انټرنټ. | |
| ٥- د ارزونې طريقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې، له نقشې څخه کار اخيستل او د فعاليتونو ارزونه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولگي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | لومړنۍ کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولگي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او ټولگي څخه د بهر فعاليتونو کتنه. | ۱۰ دقيقې |
| | د انگيزې رامنځته کول (هڅونه): د لاندې پوښتنې کول:<br>ستاسي په فکر افريقا د کومو آبنا وو او کانالونو له لارې له سمندرسره تړل کيږي؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| - له مخکیني لوست سره د نوي لوست د اړیکو ټینګول.<br>- د افریقا د لویې وچې د سمندري اوسیندني لیږدـ رالیږد توضیح کول.<br>- د نقشې پر مخ د اوبو د لارو او بندرونو ښودنه.<br>- د لوست د تصویرونو په هکله له زده کوونکو سره بحث.<br>- د ټولګي دننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګروپونو کې د زده کوونکو تنظیمول.<br>- له ګروپي کار څخه کتنه او د زده کوونکو لارښوونه.<br>- د لوست پوښتنې دې طرحه کړي.<br>- د زده کوونکو پوښتنې دې ځواب کړي.<br>- زده کوونکو ته دې د ټولګي بهر فعالیت وسپاري او هغه دې ورته روښانه کړي. | - د ښوونکي معلوماتو ته دې غوږ ونیسي.<br>- نقشې ته ګوري او پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>- د لوست د تصویرونو په هکله د ښاغلي ښوونکي سره خبري کوي.<br>- د ټولګي دننه فعالیت د سرته رسولو لپاره دې په ګروپونو کې سمه ونډه واخلي.<br>- د لوست پوښتنوته ځواب ورکوي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت دنده له ځان سره لیکي. | ۳۵ |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**د ټولګي دننه فعالیت ځواب:** له باب المندب آبنا،سویز کانال او جبل الطارق آبنا څخه تیریږو.

**د پوښتنو ځوابونه:**

۱ـ سویس کانال.

۲ـ د اتلانتیک سمندر او مدیترانې سمندرګي ترمنځ.

۳ـ پخوا د لیږدـ رالیږد په لومړني شکل کې له حیواناتو او انسان څخه ګټې اخیستنې رواج درلود. اوس د ترانسپورت پرمختللی شکل یعنې سرکونه، د اوسپنې کرښې او د اوبو او هوایي ترانسپورت بیلابیل ډولونه کارول کیږي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د افریقا د لویې وچې مشهور سمندري اوسیندني بندرونه:
دافریقا د لویې وچې ځینې ساحلي هیوادونو و کولای شول چې د اوبو له لارې د لیږد ـ رالیږد لپاره په ځینو هیوادونو کې مهم صنعتي او سوداګریز ښارونه او بندرونه جوړ کړي. د بلیګې په توګه د څو مشهورو بندري ښارونو چې د اړوند هیوادونو په سوداګرۍ او پرمختیا کې ارزښت لري، دسرکونو او اوسپنې له کرښو سره تړلي دي، او د افریقا د لویې وچې له جنوب ختیځ څخه تر شمال لویدیځ او شمال پورې موقعیت لري، په لاندې ډول سره یې نومونه اخلو:
په جنوبي افریقا کې د دوربان او کپ تاون ښارونه، په انګولا کې د نامیبي او لوندا ښارونه، په زایر کې د بوما ښار، په ګابون کې، ګینه، په کامیرون کې د دوواکا ښار، په نایجریا کې د پورت هارکورت او لاګوس ښارونه، په بنین کې دپورت نووښار، په ګانا کې د اکرا ښار، په لایبریا کې مونرویا، په سیرالیون کې پریتون، په سنیګال کې داکار، په موریتانیا کې نواکچوت، په مراکش کې کازابلانکا، په الجزایر کې الجزیره، په تونس کې تونس، په لیبیا کې تریپولي او په مصر کې د قاهرې ښار دی.

**د اوه لسم لوست د تدریس د لارښوونې پلان**

**د تدریس موده: ( دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د آسترالیا موقعیت (څلور خواوې او د آسترالیا کشف) | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه:<br>- د استرالیا د لویې وچې له موقعیت سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>- د عرض البلد او طول البلد له مخې د آسترالیا د لویې وچې له موقعیت سره اشنایي.<br>- د اوبو او ګاونډیو وچو له مخې د استرالیا د لویې وچې له څلور خواوو سره اشنایي.<br>- د استرالیا له کشف سره اشنایي.<br>- د استرالیا د لویې وچې موقعیت د نقشې پرمخ وښیي. | |
| ۳ – د تدریس میتودونه | د لوست توضیح، انفرادي او ګروپي کار | |
| ٤ – درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د استرالیا د لویې وچې نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، توره تخته، تباشیر، جغرافیایي کره، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډیویي او ټلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سي ډي ګانې او انټرنټ. | |
| ٥- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (لنډځوابه پوښتنې، سم او ناسم، او د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار | |
| ٦ – په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنی کړنې: د احوال پوښتنه، په ټولګي کې د نظم برابرول، د حاضرۍ او ټولګي څخه د بهر فعالیت کتنه. | ۱۰ دقیقې |
| | د انګیزې رامنځته کول (هڅونه): پوښتنه دې وشي:<br>استرالیا د ځمکې د کرې په کوم ځای کې پرته ده؟ | |

| وخت په دقیقې | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مفاهیمو او موضوعګانو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ | - د ښوونکي معلوماتو ته دې غوږ ونیسي.<br>- نقشه دې مطالعه کړي.<br>- د تصویرونو په هکله دې بحث وکړي.<br>- د ټولګي دننه ګروپي کارونو کې دې فعاله ونډه واخلي.<br>- پوښتنو ته دې ځواب ورکړي.<br>- پوښتنې دې وکړي.<br>- له ټولګي څخه د بهر فعالیت دنده دې له ځان سره ولیکي. | - د دویم فصل موضوع ور پیژني.<br>- د استرالیا موقعیت او کشف توضیح کوي.<br>- د آسترالیا لویه وچه د نقشې پرمخ ښیي.<br>- د لوست د تصویرونو په هکله له زده کوونکو سره خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي په ټولګي کې دننه فعالیت لپاره په ګروپونو کې برابرول.<br>- له ګروپي کار څخه کتنه کوي.<br>- د لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>- د زده کوونکو پوښتنې ځوابوي.<br>- له ټولګي څخه د بهر فعالیت په هکله سپارښتنه کوي. |

**۸. د لوست د متن د پوښتنو ځوابونه:**

**پوښتنو ځوابونه**

۱ـ ص

۲ـ ص

۳ـ ص

٤ـ ص

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د آستراليا لويه وچه له اوه نيم ميلونه مربع کيلومترو څخه د ډېرې پراختيا (مساحت) په درلودلو د آرام سمندر او هند سمندر په اوبو کې پرته ده. پنځوس کاله دمخه د استراليا نوم د يوه ټاپو په توگه اخيستل کيده خو د جغرافيې په اوسنيو کتابونو کې له هغې څخه د يوې لويې وچې په توگه يادونه کيږي. په دې توگه استراليا د نړۍ يواځينې هيواد دې چې په يوه وخت کې يوه لويه وچه هم گڼل کيږي. استراليا د پراخوالي له بابته په نړۍ کې د روسي فدراسيون، کاناډا، چين، د امريکا متحده ايالتونو او برازيل څخه وروسته شپږم هيواد دې.

د استراليا لويه وچه د ټولو وچو په پرتله ټيټه پرته ده او د نورو وچو په پرتله لږې لوړې ـ ژورې لري. په دې لويه وچه کې د پراخه وچو او نيمه وچو سيمو شتون ددې لويې وچې له ځانگړتياوو څخه دي.

**د اتلسم لوست د تدریس د لارښوونې پلان**

**د تدریس موده (یو درسي ساعت )**

**مضمون جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د استرالیا د لویې وچې طبیعي جغرافیه | |
| ۲- د زده کـــړې مــــوخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>عمومي موخه: د استرالیا د لویې وچې له طبیعي جغرافیا سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>- د استرالیا د طبیعي جغرافیې له ویش سره اشنایي.<br>- د استرالیا له غرونو سره اشنا یي<br>- زده‌کوونکي وکولای شي چې د استرالیا سپینه طبیعي نقشه ډکه کړي. | |
| ۳- د تدریس میتودونه | د لوست توضیح، انفرادي او ګروپي کار | |
| ۴- درسي او مرســـتندویه درسي سامانونه او لوازم | د استرالیا د لویې وچې طبیعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتـــاب، تـــوره تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې جغرافیایي ویـــدیویي او تلویزیـــوني فلمونـــه، کمپیوتري سي ډي ګانې او انترنت. | |
| ۵- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (دفعالیتونو ارزونه، لنډ ځوابه پوښتنې ) او عملي کار. | |
| ٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنۍ کړنې: د سلا م اچول او د احوال پوښتنه، د ټولګي دنظم برابرول، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست او فعالیتونو ارزونه<br>د انګیزې را منځته کول( هڅونه) :<br>د آسترالیا زیاتره غرونه په کومو برخو کې موقعیت لري؟ | ۱۰ دقیقي |

| ۷ د ښاغلي ښوونکي د تدریس فعالیتونه (دمفاهیمو او موضوعگاتو زده کړه او ارزونه) | د زده‌کوونکي د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقې |
|---|---|---|
| – له تیر لوست سره د نـوي لوسـت د اړیکـو ټینگول.<br>– د اتلسم لوست لنډه پیژندنه.<br>– د استرالیا د لویې وچې سیمه ییزویش روښـانه کوي.<br>– د آسترالیا غرونه د نقشې پر مخ ښیي.<br>– د لوست د تصویرونو په هکله له زده کوونکـو سره خبري کوي.<br>– زده‌کوونکي په گروپونو ویـشي او د هغـوئ د ټولگي د ننه فعالیت دندې روښانه کوي.<br>– د لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>– د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب وایې.<br>له ټولگي څخه بهر فعالیت سپارښتنه کوي. | – له تیر لوست سـره د نـوي لوسـت اړیکـې پیداکوي.<br>– د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>– نقشه مطالعه کوي.<br>– د تصویرونو په هکله بحث کوي.<br>– پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>– خپلې ستنونزی بیانوي.<br>– له ټولگي څخه بهر فعالیت دنده له ځـان سـره لیکي. | ۳۵ |

**۸– د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– په څلورو سیمو، مرکزي دښتې چې د ځمکې لاندې پریمانه اوبه لري، لودیځ فلات (سطحی)چې په عمومي توگه دښتې دي، ختیځې ساحلي جلگې چې په حقیقت کې د گریت ډیوای ډینگ غرونو ختیځې لمنې دي، لوړی یا ختیځ غرونه چې په گریت ډیوای ډینگ سره مشهور دي.

۲– ملي با غ یا ملي پارک (National Park) له هغه طبیعي قیمتي ارزښتناک ځای څخه عبارت دې چې لږ تر لږه لس زره هکتاره پراختیا ولري او د دولت له لوري یې ساتنه او پالنه وشي.

۳– د آسترالیا غرونه له اقتصادي پلوه د اوبو ښه زیرمه گڼل کیږي او همدغه راز په دغه سیمه کې ملي پارکونه شته چې د ژمني سپورت اوسکې لوبو له امله یوه ښه توریستي او عایداتي سیمه گڼل کیږي. د آسترالیا غرونه له ټولنیزه پلوه د سیاحت، تفریح او نورو چارو لپاره په زړه پورې دي.

۴– د آسترالیا غرونه په ځینې ځایونو کې د تگ–راتگ مخه ډب کوي او ترانسپورتي ستونزې را پیداکوي. دا غرونه د تفریح او ارامی لپاره ښې سیمې لري. همدارنگه د ملي پارکونو درلودونکي دي چې د ژمني سپورت ( سکي لوبې) لپاره په آسترالیا کې یواځینی سیمه گڼل کیږي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د آستراليا لويه وچه په نړۍ کې تر ټولو ټيټه او اواره ځمکه ده. نږدې په سلو کې اويا برخې په دي لويه وچه کې پراخو او پخوانيو سطحو نيولي دي. جغرافيي پوهان دا هيواد په دريو جغرافيايي سيمو ويشي: ختيځې لوړې سيمې، مرکزي جلګه، لوديځ فلات.

استراليا زياتره له پراخه دښتو او لوړو سطحو څخه جوړه ده. د استراليا په ختيځ کې تپه يي منظرې د پاملرنې وړ دي. ددې غرونو لوړه څوکه د استراليا په جنوب ختيځ کې د کوسيسکو په نوم يادېږي. د دې غره په شاوخوا او همدارنګه د تاسمانيا په غرونو کې د کنګلونو سيمې تر سترګو کيږي چې د سکي لوبو کونکو لپاره د تفريح ځايونه دي. په استراليا کې يوازې دوه جهيلونه (ويکتوريا او تاسمانيا) په ژمي کې کنګل کيږي چې د سکې لوبو کوونکو لپاره مناسب ځايونه دي.

د استراليا ختيځې برخې له لوړو ځمکو څخه جوړې دي چې له کيپ يورک څخه پيل او تر ويکتوريا او تاسمانيا پورې رسيږي. ددې سيمې غرونه د ګريت ډيواى ډينګ په نوم ياديږي او لوړه څوکه يي کوسيسکو نوميږي.

# د نو لسم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده (دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | د استرالیا سیندونه | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، معلوماتي او ذهنیتي ) | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>عمومي موخه: د استرالیا له سیندونو سره اشنایي<br>جزئي موخې:<br>- د استرالیا د سیندونو له اقتصادي ارزښت سره اشنایي.<br>- د استرالیا د سیندونو له جغرافیایي ځانګړتیاو سره اشنایي.<br>- د استرالیا د سیندونو موقعیت و پیژنی او د نقشې پر مخ یي وښایی. | |
| ۳- د تدریس میتودونه | توضیحي، پوښتنې او ځواب، ګروپي کار | |
| ۴- درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم | د آسترالیا طبیعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، تخته، تباشیر، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویدیوي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي ګانې او انترنت | |
| ۵- د ارزونې طریقې: | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې )، د فعالیتونو ارزونه او عملي کار | |
| ۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه | لومړنی کړنې: سلام اچول او د احوال پوښتنه، د ټولګي د نظم برابرول، د حاضرۍ اخیستل، د تیرلوست ارزونه له ټولګي څخه بهر فعالیت څارنه او کتنه.<br>د انګیزې را منځته کول( هڅونه) :<br>نقشې ته وګورئ. د استرالیا په کومو سیمو کې سیندونه ډیر دي. | ۱۰ دقیقي |

| وخت په دقيقې | د زده کوونکود زده کړې فعالیتونه | ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| | – د ښوونکې معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>– د سیندونو موقعیت د نقشې پر مخ ټاکي.<br>– د تصویرونو په هکله بحث کوي.<br>– په گروپونو کې د ټولگي د نن کړنې سرته رسوی.<br>– پوښتنو ته ځواب وايي.<br>– خپلې ستونزې بیانوی.<br>– له ټولگي څخه بهر فعالیت دنده له ځان سره ليکي | – د نولسم لوست لنډه پيژندنه.<br>– د استرالیا د سیندونو پیژندنه او توضیح کول.<br>– د استرالیا سیندونه د نقشې پر مخ وښيي.<br>– د لوست د تصویرونو په هکله دې له زده کوونکو سره خبرې وکړي.<br>– زده کوونکي دې د ټولگي د نن فعالیت لپاره په گروپونو وویشي.<br>– له گروپي کار څخه کتنه کوي.<br>– له زده کوونکو څخه پوښتنې کوي.<br>له ټولگي څخه د بهر فعالیت سپارښتنه کوي. |

**۸– د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– دځمکې لاندې اوبه تر ډیرې کچې د خلکو اړتیاوې پوره کوي. په نړۍ کې د ځمکې لاندې اوبو تر ټولو لویه حوزه په استرالیا کې ده چې د کارپنتاریا له خلیج څخه تر دارلینگ حوزی پوری پراخوالی لري.

۲– د استرالیا د شمال او شمال ختیځ سیندونه میشل او فلینډرز دي او همدغه راز د استرالیا په شمال کې د ویکتوریا، دلی او اورد سیندونه بهیږي.

۳– د استرالیا سیندونه په اوړی کې تر ټولو ډیرې اوبه لري.

۴– ځکه چې د استرالیا د سیندونو اوبه زیاتره له بارانونو او تریوې کچې د الپ غرونو د واوروله ویلې کیدنو څخه را منځته کیږي. له همدې امله په اوړی کې اوبه ډیرې وي یعنې هغه وخت چې د اوبو کچه د موري او ډارلینگ په سیندونو کې لوړیږي نو اوارو دښتنو ته ورننوځي او کله نا کله ویجاړۍ هم را منځته کوي.

۵– د موري او ډارلینگ د سیندونو له اوبو څخه د ځمکو په خړوبولو کې کار اخیستل کیږي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

سیندونه:

د اقیانوسیې لویې وچې ځانګړی موقعیت ددې لامل شوی چې د نړۍ په دې سیمه کې بیلابیل سـیندونه وبهیـږي. ځکه د سمندرونو د اوبو په منځ کې را ګیروالی او همدغه راز د سمندرونو د اوبو د ډیر لنده بل څخه په ګتی اخـستنی سره ددې لویې وچې په بیلابیلو سیمو او ټاپوګانو کې زیات باران اوري. له یاده باید ونه باسو چې د استرالیا ټـاپو د ډیرې پراختیا له مخې په پرتله ییزه توګه د اوږدو سیندونو درلودونکې دی. په نورو ټاپوګانو کې هغوی د لږې پراختیـا له امله د سیندونو اوږدوالی لږدې. د استرالیا تر ټولو مشهور سیندونه دادي:

د ډارلینګ (Darling) سیند، چې د استرالیا په خلیج کې تویږي.

د لاج لن (Lach lan) سیند چې د ډارلنګ له سیند سره یوځای کیږي

د فلیندرز (Flinders) سیند چې د کارپنتاد یا په خلیج کې تویږي.

د مورچې سون (Murchison) سیند چې د هند په سمندرکې تویږي.

## د شلم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: (یو درسي ساعت )**

**مضمون : جغرافیه**

| | | |
|---|---|---|
| **د مطا لبو عنوانونه** | د مطالبو تشریح | |
| **۱- دلوست موضوع** | د استرالیا جهلیونه | |
| **۲- د زده کړې موخې (علمـــي، مهـــارتي، ذهنیتی)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>عمومي موخه: د استرالیا د لویې وچې له جهیلونو سره اشنایي.<br>جزئې موخې:<br>- د استرالیا د لویې وچې له جهیلونو سره اشنایي.<br>- د استرالیا د جهیلونو موقعیت وپیژني او د نقشې پر مخ یې وښيي. | |
| **۳- د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، پوښتنه او ځواب، انفرادي او گروپي کار | |
| **۴- درســـــــي او مرســـتندویه درســـي سامانونه او لوازم** | د استرالیا طبیعي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، تخته، تباشیر او د امکان پـــه صورت کې جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي گانې او انترنت. | |
| **۵- د ارزونې طریقې:** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې )، او د فعالیتونو ارزونه | |
| **۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړنۍ کړنې: د سلام اچول او د احوال پوښتنه، د ټولگي د نظـــم برابـــرول، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه، له ټولگي څخه د بهر فعالیت د پایلو کتنـــه او څارنه.<br><br>د انگیزې را منځته کول( هڅونه) :<br>جهیلونه د آسترالیا په کومه برخه کې موقعیت لري؟ | ۱۰ دقیقې |

| وخت په دقیقو | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ | – د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>– جهیلونه د نقشې پر مخ په ګوته کوي.<br>– د تصویرونو په هکله بحث کوي.<br>– پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>– پوښتنې طرحه کوي.<br>– له ټولګي څخه د بهر فعالیت دنده له ځان سره لیکي. | – شلم لوست لنډ معرفي کړي.<br>– د استرالیا د جهیلونو معرفي او روښانه کول.<br>– د استرالیا جهیلونه د نقشې پر مخ ښیي.<br>– د لوست د تصویرونو په هکله له زده کوونکو سره خبرې کوي.<br>– زده کوونکي د ټولګي د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګروپونو وویشي.<br>– له ګروپي کار څخه کتنه کوي.<br>– د لوست په هکله پوښتنې کوي.<br>– د زده کوونکو پوښتنې ځوابوي.<br>– له ټولګي څخه د بهر فعالیت دنده ورکوي |

**۸– د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– د استرالیا تر ټولو ټيټه نقطه د ایر په جهیل کې پرته ده.

۲– د استرالیا جهیلونه ایر، تورنس، ګایردنر، کارنګي، بارلي، مور او نور دي.

۳– کله نا کله د ډیرې تودوخې له امله د نومړو جهیلونو اوبه تبخیریږي،وچیږي او جهیلونه په مالګینو جهیلونو تبدیلیږي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**جهیلونه: د استرالیا په لوي ټاپو کې ګڼ شمیر جهیلونه موقعیت لري چې دغه ډول جهیلونه د اوقیانوسیې په نورو ټاپوګانو کې نه تر سترګو کیږي چې د هغوی ډیر شمیر د باران تر اوریدلو وروسته له اوبو څخه ډکیږي.**

**دا جهیلونه زیاتره د استرالیا په جنوبي او جنوب لودیځو برخو کې لیدل کیږي. د استرالیا مشهور جهیل د ایر په نوم یادیږي چې د ارتیزین ( ترځمکې لاندې اوبو) سیمې په جنوب لودیځ کې موقعیت لري او د هغې په شاوخواکې ډیر لږ خلک اوسیږي. داجهیل زیاتره وچ وي او سطحه یې د مالګې په وسیله پوښل شوې وي. له یادوشویو جهیلونو پرته په استرالیا کې نور جهیلونه لکه کارنګي، بارلي، مور، ایر، فروم، کریګوري اونور، هم موقعیت لري.**

## د یو ویشتم لوست د تدریسس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: (یو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافیا**

| **د مطالبو عنوانونه** | **د مطالبو تشریح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د استرالیا اقلیم | |
| **۲- د زده کړې موخې (علمي،مهارتي او ذهنيتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د زده کړې په پای کې لاندې موخوته ورسیږي:<br>عمومي موخه: د استرالیا د لویې وچې له اقلیم سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>- د استرالیا په لویه وچه کې د کال له بیلابیلو فصلونو سره اشنایي.<br>- د استرالیا له اقلیمي ځانګړتیاوو سره اشنایي.<br>- د استرالیا د اقلیمي سیمو له ویش سره اشنایي.<br>- مشهوری اقلیمي سیمې د نقشې پر مخ ښیي. | |
| **۳- د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، انفرادي کار، پوښتنه او ځواب او ګروپي کار. | |
| **۴- درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم** | د استرالیا د طبیعي او اقلیمي سیمو نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي ګانې او انترنت | |
| **۵- د ارزونې طریقې:** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې ) او د فعالیتونو ارزونه | |
| **۶- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړنۍ کړنې: د سلام اچونه او د احوال پوښتنه، د ټولګي د نظم برابرول، د تیر لوست ارزونه، له ټولګي څخه د بهر فعالیت د پایلو کتنه او څارنه.<br>د انګیزې رامنځته کول (هڅونه):<br>د استرالیا کومې سیمې استوایي او نیمه استوایی اقلیم لري؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د تدریس فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| - یو ویشتم لوست دې لنډ معرفي کړي.<br>- د استرالیا د هرې سیمې اقلیمي ځانګړتیاوې دې روښانه کړي.<br>- د استرالیا اقلیمي سیمې دې د نقشې پر مخ وښيي.<br>- زده‌کوونکي دې د ټولګي د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګروپونو وویشي.<br>- له ګروپې کار څخه کتنه کوي.<br>- د لوست پوښتنې دې وکړي.<br>- د زده کوونکو پوښتنې ځوابوي.<br>- له ټولګي څخه د بهر فعالیت سپارښتنه کوي | - د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>- اقلیمي سیمې د نقشې پر مخ ټاکي.<br>- په ګروپونو کې د ټولګي د ننه فعالیت سرته رسوی.<br>- پوښتنې طرحه کوي.<br>- پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت له ځان سره لیکي. | ۳۵ |

**۸- د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱- د استرالیا زیاتره مرکزي او لویدیځې سیمې دښتي (صحراي) اقلیم لري.

۲- د استرالیا غرنۍ سیمې په منځنۍ توګه ډیر کلنی اورښت لري.

۳- د جدې کرښه د هغې له منځ څخه تیریږی، تود اوړی او معتدل ژمی لري.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

استرالیا د ډول ډول او بیلا بیلو اوبو او هوا (اقلیم) درولودونکې ده. خو دا ډول رنګارنګي د سمندرونو د شتون او د لوړو غرونو په نشتوالي سره یو ډول کیږي. په عمومي توګه آسترالیا یو تود هیواد شمیرل کیږي.

د جدي کرښه د هغې له منځه تیریږي او د کال فصلونه په دې ځای کې د شمالي نیمې کرې سره توپیر لري. دجدي کرښه د هیواد له جنوب څخه تیریږي اوړی یې تود او ژمی یې معتدل دي. د استرالیا $\frac{۲}{۳}$ برخې دومره وچې دي چې د کرنیزو کړنو لپاره ورڅخه ګټه نه اخیستل کیږي. د آسترالیا په شمال کې په اوړي کې موسمي بارانونه اوري، خو په دې هیواد کې باران اوروونکي بادونه لودیځ بادونه دي چې د ژمی په اوږدوکې لګیږي. د آسترالیا په ځینو سیمو کې د اوربنت کچه ډیره لږه ده او ښایي د وچکالۍ د رامنځته کیدو سبب شي.

## د دوه ویشتم لوست د تدریس دلارښوونې پلان

**د تدریس موده: (یو درسي ساعت)**

**مضمون: جغرافیا**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د استرالیا سیاسي جغرافیه | |
| **۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه: د استرالیا له سیاسي جغرافیي سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>- د فدرالي، مشروطه شاهي یا پارلماني شاهي دولت سره اشنا شي.<br>- د استرالیا د لویې وچې له سیاسي ویش سره اشنا شي.<br>- د استرالیا ایالتونه د نقشې پر مخ وښیې. | |
| **۳- د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، انفرادي کار، پوښتنه او ځواب، ګروپي فعالیت. | |
| **۴- درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم** | د استرالیا د لویې وچې سیاسي نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، تخته، تباشیر، او د امکان په صورت کې جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي ګانې او انترنت. | |
| **۵- د ارزونې طریقې:** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار | |
| **۶- په ټولګي کې د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | لومړنۍ کړنې: د سلام اچونه او د احوال پوښتنه، د ټولګي دنظم برابرول، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه، له ټولګي څخه د بهر فعالیت څارنه او کتنه.<br>د انګیزې را منځته کول( هڅونه) :<br>د استرالیا د حکومت ډول څرنګه دې ؟ | ۱۰ دقیقې |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکود زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقي |
| --- | --- | --- |
| – د تیر لوست اړیکې له نوي لوست سره ټینګــــی کړی.<br>– دوه ویشتم لوست لنډ معرفي کوي.<br>– د استرالیا د حکومت ډول او سیاسي ویش روښانه کوي.<br>– ښارونه او پایتخت یي وریپژني.<br>– د استرالیا بیلابیل ایالتونه د نقشې پر مخ ښیي.<br>– د لوست د تصویرونو په هکله لــــه زده کوونکـــو سره خبرې کوي.<br>– زده‌کوونکي په ټولګي کــې د فعالیـــت د ســـرته رسولو لپاره په ګروپونو ویشي.<br>– له ګروپي کار څخه څارنه او کتنه کوي.<br>– د لوست پوښتنې وړاندې کوي.<br>– د زده کوونکو پوښتنې ځوابوی.<br>– له ټولګي څخه بهر فعالیت سپارښتنه کوي. | – دتیرلوست او نوي لوست په اړیکو ځان پــــوه کړي.<br>– د ښوونکي معلوماتو ته غوږ ونیسي.<br>– بیلابیل ایالتونه د نقشې پر مخ نښه او وپیژني.<br>– د تصویرونو په هکله بحث وکړي.<br>– په ګروپونو کې د ټولګي د ننه فعالیت ســـرته رسوی.<br>– پوښتنو ته ځواب ورکړي.<br>– خپلي ستونزې دې له ښاغلي ښوونکي سره شریکې کړي.<br>– له ټولګي څخه بهر فعالیت دنده له ځانه ســـره لیکي. | |

**۸– د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– په شپږو ایالتونو جنوبي نوي ولز، ویکتوریا، کوینزلند، جنوبي استرالیا، لودیځی استرالیا،تـــسمانیا اود پایتخـــت دوه خپلواکه سیمې کانبرا او شمالي سیمې ویشل شوی دې.

۲– استرالیا په ۱۹۰۱م کال خپله خپلواکې له انګلستان څخه تر لاسه کړه.

۳– د استرالیا د حکومت ډول مشروطه شاهي اویا پارلماني شاهي دی.

۴– د استرالیا پایتخت په جنوب ختیځه برخه د نیوساوت ولز (جنوبی نوي ولز) په ایالت کې موقعیت لري.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د ۱۷۸۸ م کال د جنوري په ۲۸ نېټه په استراليا کې د لومړي ځل لپاره يوه انګليسي (کالوني) يا په استراليا کې د انګليسانو ټولنه را منځته شوه او په دې ډول د لويې برتانيا د دولت د سياسي او اقتصادي واک د پراختيا لپاره زمينه برابره شوه. دا (کالوني) د استراليا په جنوب ختيځو سواحلو کې چې وروسته د ويکتوريا دملکې په ياد، چې زور واکه انګليسي واکمنه وه، د "ويکتوريا" نوم ورکړل شو، را منځته شوه. د نوموړې ټولنې خلک يوه ډله پېښنه لټوونکې، فراريان (تبعيد شوو) او په شاقه کارونو محکوم شوي کسان وو. ۱۱۳ کاله وروسته د ګډو ګټو لرونکې آستراليا هيواد، په داسې حال کې چې واکمن به يې د انګلستان پا چا يا ملکې ټاکه، په رسمي توګه را منځته شو او دا نېټه د ۱۹۰۱م کال د جنوري لومړۍ ورځ (د شلمې پېړۍ د لومړي کال لومړۍ ورځ) وه.

آستراليا اوه پارلمانه لري چې ايالتونه په هر ايالت کې اړونده چارو ته رسيد نه کوي او يو عمومي او ګډ پارلمان په کانبرا کې ځای لري چې د ټول هيواد اړوند چارې اداره کوي. ددې معلوماتو په مرسته کولای شو چې د آستراليا حکومت د امريکا او کاناډا په څېر يو ډول فدرالي حکومت وبولو:

هر ايالت د خپلو اړوند چارو لکه ښوونه او روزنه، روغتيا، امنيت، لارې جوړونې او سړک جوړونې مسئوول دی او مرکزي حکومت د اردو (هوايي، سمندري او ځمکنۍ قواوې)، پست، تليفون او د نورو هيوادنو په هکله د سياست ټاکنه، د ګمرکونو پالنه او پر وارداتو ماليه او نورې چارې سمبالوي.

نورې ډېرې د کرنې، سوداګرۍ او صنايعو اړونده چارې د هر ايالت او عمومي پارلمان له اړخه په ګډه توګه سمباليږي، هغه وخت چې په ۱۹۰۱م کال کې عمومي پارلمان را منځته شو د ټولو په اتفاق، کانبرا د پلازمينې په توګه وټاکل شو.

## د درویشتم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: (یو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافیه**

| **د مطالبو عنوانونه** | **د مطالبو تشریح** | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د استرالیا بشري جغرافیا | |
| **۲- د زده کـــړې مــوخې (علمـــي، مهارتی او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>عمومي موخه: د آسترالیا له بشري جغرافیې سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>- د استرالیا له نفوسو او د خلکو له نژاد سره آشنا شي.<br>- د آسترالیا په بیلابیلو سیمو کې د نفوسو له ګڼوالی سره آشنا شي.<br>- په آسترالیا کې د نویو کډوالو او بیلابیلو نژادونو له شمیر سره آشنا شي. | |
| **۳- د تـــــدریس میتودونه** | د لوست توضیح، انفرادي کار، پوښتنه او ځواب، ګروپي کړنې. | |
| **۴- درســـــي او مرستندویه درســـي سامانونه او لوازم** | د استرالیا د نفوسو د ګڼوالی نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، تخته، تباشـــیر او د امکان په صورت کې جغرافیایی ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، د کمپیوتر سي ډي ګانې او انترنت | |
| **۵- د ارزونـــــې طریقې:** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار | |
| **٦- په ټولګي کې د تـــدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړنۍ کړنې: سلام اچونه او د احوال پوښتنه، د ټولګي د نظم برابرول، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه، د ټولګي څخه بهر فعالیت د پایلو څارنه او کتنه.<br>د انګیزې را منځته کول( هڅونه) :<br>د استرالیا په کومو سیمو کې د نفوسو ګڼوالی ډیر دې ؟ | ۱۰ دقیقي |

| وخت په دقیقو | د زده کوونکود زده کړې فعالیتونه | ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطلبونو زده کړه او ارزونه) |
| --- | --- | --- |
| ۳۵ | – د ښوونکي معلوماتو ته غوږ ونیسي.<br>– د نفوسو ګڼوالی دې د نقشې پر مخ معلـــوم او وټاکي<br>– د تصویرونو په هکله دې بحث وکړي.<br>– په ګروپونو کې دې د ټـــولګي د ننـــه فعالیـــت ترسره کړي.<br>– پوښتنې دې وکړي.<br>– پوښتنو ته دې ځواب ووایي.<br>– د ټولګي بهر فعالیت دنده دې له ځـــان ســـره ولیکي. | – درویشتم لوست دې معرفي کړي.<br>– د استرالیا په بیلابیلو سیمو کـــې دې د نفوســـو ګڼوالی روښانه کړي.<br>– هغه مرکزونه چې په هغی کې د نفوسو ګڼوالی ډیر دې د نقشې پر مخ وښیي.<br>– د لوست د تصویرونو په هکله له زده کوونکـــو سره خبرې وکړي.<br>– زده‌کوونکي دې د ټولګي د ننه فعالیت لپاره په ګروپونو وویشي.<br>– له ګروپي کار څخه کتنه وکړي.<br>– د لوست پوښتنې دې وکړي.<br>– د زده کوونکو پوښتنې دې ځواب کړي.<br>– له ټولګي څخه بهر فعالیت دنده دې وسپاري. |

**۸– د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– د آسیا له جنوب ختیځ څخه استرالیا ته کډه شوې دي او شمیر یې (۶۰۰۰۰) تنو ته رسیږي.

۲– د استرالیا دا وسنیونفوسو زیاتره، اروپایي سپین پوټکي په تیره بیا انګلیسان دې.

۳– د افغانستان نفوس په (۲۰۰۵)م کال د ۲۵ میلونه څخه زیات وو او پراخوالی یي ۶۵۲ زره کیلومتره مربـــع دی. د استرالیا نفوس په ۲۰۰۵م کال له ۲۰ ملیونو تنو څخه زیات وو او پراخوالی یي هم د۷ میلیونوکیلومترو مربع څخه ډیـــر دی. افغانستان دوچې پورې تړلی هیواد دې، او استرالیا یوه لویه وچه او یا یو لوي ټاپو دی چې د نفوسو په پرتلـــه یـــې پراخوالی خورا ډیر دې.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**د استراليا بوميان:**

د استراليا لومړني اوسيدونکي هغه بوميان دي چې د آسيا له جنوب ختيځ څخه دغه ځای ته کډه شوي او تر (تاسماني) ټاپو پورې خپاره شوي دي، او په ځانګړې توګه د استراليا په مرکزي سيمو کې چې بيخي وچې دي، ژوند کوي.

داسې ګمان دی چې د استراليا بوميان ديرش زره کاله دمخه دې وچې ته راغلي وي. په ۱۷۰۰م کلونو کې د دوه زره تنو په شاوخواکې بوميان د تاسمانی په ټاپو کې اوسيدل. دوه سوه کاله د مخه د سپين پوستکو د کشفولو له پيل څخه د هغوئ او استراليايي بوميانو تر منځ د جګړې د را منځته کيدلو وروسته، د بوميانو د نفوسو شمير په لږيدو شو. په هغه وخت کې د استراليايي بوميانو نفوس ۳۰۰ زرو تنو ته رسيده. چې په ۵۵۰ قبيلو ويشل شوي وو او هره قبيله له څو خيلونو او ډلو څخه جوړه وه چې د هر خيل او ډلې د نفوسو شمير د ۳۰ نه تر ٦۰ تنو پورې رسيده. په استراليا کې د اروپايانو د شمير په ډيريدو سره، بوميانو د خپلې ښکار سيمې له لاسه ورکړي او نن ورځ له هغوئ څخه ډير کسان په خپلې پخوانی طريقې سره په ۳۵۰ بومي محدودو سيمو کې ژوند کوي. يو شمير يې دغواګانو او پسونو د روزنې په مرکزونو کې کار کوي او يو شمير نور يې د ښارونو پر لوري تللي دي.

## د ځلر ویشتم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: (یو درسي ساعت )**

**مضمون: جغرافیا**

| | | |
|---|---|---|
| **د مطالبون عنوانونه** | **د مطالبو تشریح** | |
| **۱- د لوست موضوع** | د استرالیا دین او ژبه | |
| **۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه: د استرالیا د خلکو له دین او ژبې سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>- د استرالیا په لویه وچه کې دبیلا بیلو دینونو سره اشنا شي.<br>- د استرالیا په لویه وچه کې د بیلابیلو ژبو سره اشنا شي.<br>- په استرالیا کې د بیلابیلو دینونو د اوسیدو ځایونه په نقشه کې وښیي. | |
| **۳- د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، انفرادي کار، پوښتنه او ځواب، گروپي فعالیت | |
| **۴- درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم** | د استرالیا د دینونو نقشه، درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، تخته، تباشیر، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي گانې او انترنت | |
| **۵- د ارزونې طریقې:** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار. | |
| **٦- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړنۍ کړنې: د سلام اچونه او د احوال پوښتنه، د ټولگي د نظم برابرول، د حاضرۍ اخیستل، د تیرلوست ارزونه، له ټولگي څخه بهر فعالیت د پایلو څارنه اوکتنه. | **۱۰ دقیقي** |
| | د انگیزې را منځته کول( هڅونه) :<br>په استرالیا کې کوم دین ډیر پیروان لري؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطلبونو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړي فعالیتونه | وخت په دقیقي |
| --- | --- | --- |
| - د تیر لوست سره د نوي لوست د اړیکو ټینګول.<br>- د څلر ویشتم لوست لنډه معرفي وکړي.<br>- د استرالیا د دینونو او ژبو په هکله معلومات ورکړي.<br>- د بیلابیلو دینونو د اوسیدنی ځایونه د نقشې پر مخ ښیي.<br>- هغه مرکزونه چې په هغی کې د بیلابیلو دینونو پیروان خپاره دي، د نقشې پر مخ وښیي.<br>- زده کوونکي د ټولګي د ننه فعالیت لپاره په ګروپونو وویشي.<br>- له ګروپي کار څخه کتنه کوي.<br>- د لوست پوښتنې کوي.<br>- زده کوونکو ته له ټولګي څخه بهر فعالیت سپارښتنه کوي.<br>- | - د نوی او تیر لوست تر منځ اړیکې پیداکوي.<br>- د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>- د بیلابیلو د ینونو د پیروانو د اوسیدو ځایونه په نقشه کې ښیي.<br>- د تصویرونو په هکله بحث کوي.<br>- په ګروپونو کې د ټولګي د ننه فعالیت سرته رسوي.<br>- پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>- له ټولګي څخه بهر فعالیت له ځان سره لیکي. | ۳۵ |

**۸- د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱- د استرالیا رسمي ژبه انګلیسي ده. استرالیا پخوا تر دې د انګلستان مستعمره وه او نن ورځ یو خپلواک هیواد دې. د هغه کسانو شمیره چې په انګلیسي ژبه خبرې کوي خورا لوړه ده.

۲- په استرالیا کې عیسوي دین پیروان لري.

۳- له بیلابیلو اسلامی سیمو څخه خلک استرالیا ته کډه شوي دي لکه د اندونیزیا، مالیزیا، پاکستان، ایران، افغانستان، او عربی هیوادونو څخه.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

**دين او ژبه**

عيسوي دين د استراليا د لويې وچې په بيلابيلو برخو کې پيروان لري. د استراليا زياتره اوسيدونکي کډوال دی چې د نړۍ له ډيرو ځايونو څخه د استراليا هيواد ته راکډه شوي او په استراليا کې ژوند کوي. د عيسوي دين د درې واړو مذهبونو لکه: کاتوليک، پروتستانت او ارتودوکس پيروانددې ټاپو په اوسيدونکو کې موندل کيږي.

د يادونې وړ ده چې د پروتستانت د مذهب د پيروانو شمير تر ټولو ډير او د ارتودوکس مذهب د پيروانو شمير تر ټولو لږ دی. دا چې استراليا د اوږدې مودې لپاره د انگليسانو اوږد مهاله مستعمره وه او رسمي مذهب يې انگليکان وو، چې د پروتستانت له مذهب سره يو ډول دی. نو همدا سبب دی چې نن ورځ په استراليا کې د پروتستانت مذهب پيروان له نورو مذهبونو څخه ډير دی.

همدارنگه په استراليا کې بيلابيلې ژبې شته چې ځينې وخت دا ژبې له يوې ستې او کله بيا بيخي يو تر بله جلا سټه لري. د ټولو ژبو په منځ کې انگليسي ژبه ډيرويونکي لري. د لوديځو ټاپوگانو په ځينو برخو کې په اندونيزيايي ژبه خبرې کيږي، ځکه اندونيزيا استراليا ته دومره نږدې ده چې د نوې گينې په نوم يو ټاپو د استراليا او آسيا تر منځ شريک دی. د اقيانوس د ټولو بومي ژبو تر منځ پولينزي ژبه ډير ويوونکي لري.

د ۲۰۰۱م کال د شميرنو له مخې په استراليا کې مسيحيان په سلو کې ٦٨، مسلمانان په سلو کې ۱,۵، بودايان په سلوکې ۱,۹، هندوان په سلو کې ۰,۵ او پاتې نور په سلو کې ۲۸،۱ دي.

## د پنځه ویشتم لوست د تدریس د لاربښوونې پلان

**د تدریس موده: (دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیا**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | اقتصادي جغرافیه | |
| **۲- د زده کړې موخې (عملي، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>عمومي موخه:- د استرالیا له اقتصادي جغرافیې سره اشنایي.<br>**جزئي موخې:**<br>- د استرالیا د اقتصاد له بیلابیلو برخو سره اشنا شي.<br>- د استرالیا دکرنې او مالدارۍ سره اشناشي.<br>- د استرالیا دکرنې او مالدارۍ له پیداوارو سره اشناشي.<br>- په استرالیا کې د بیلابیلو نباتاتو د ودې سیمې د نقشې پر مخ وښودلای شي. | |
| **۳- د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، ګروپي کار، بحث او پوښتنه او ځواب. | |
| **۴- درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم** | درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، د استرالیا د نباتاتو نقشه، تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې جغرافیایي ویډویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوټري سی ډی ګانی او انټرنټ. | |
| **۵- د ارزونې طریقې** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار. | |
| **٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | **لومړني کړنې:** د سلام اچونه او د احوال پوښتنه، د ټولګي د نظم برابرول، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه، او له ټولګي څخه د بهر فعالیت څارنه او کتنه | ۱۰ د قیقي |
| | **د انګیزې رامنځته کول (هڅونه):**<br>د استرالیا اقتصادي نقشې او یا کوم بل تصویر ته په اشارې سره د لاندې پوښتنې طرحه کول:<br>د استرالیا د پر مختګ لامل په څه کې وینئ؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکود زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| - د تختې پر مخ د نوي لوست د عنوان لیکل.<br>- په چوپه خوله د نوي لوست مطالعه.<br>- د نوي لوست ځانګړې برخې د تختې پر مخ لیکي.<br>- د اقتصادي جغرافیي محتوا، د استرالیا اقتصادي پر مختګ، کرنه او مالداري روښانه کوي.<br>- د نقشې پر مخ د بیلابیلو نباتاتو سیمې ښیي.<br>- د لوست د تصویرونو په هکله له زده کوونکو سره خبرې کوي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګرپونو وویشي.<br>- له ګروپي کار څخه کتنه کوي.<br>- له ټولګي څخه د بهر فعالیت د دندې سپارښتنه کوي. | - نوي لوست په چوپه خوله لولي او ستونزمن لغاتونه له ځانه سره لیکي.<br>- د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>- نقشې ته ګوری او مطالعه کوي يې.<br>- زده‌کوونکي په ګروپونو کې د ټولګي د ننه فعالیت سرته رسوي، یو تر بله مشوره کوي او د خپل بحث پایلی ټولګیوالوته وړاندې کوي.<br>- زده‌کوونکي له ټولګي څخه بهر فعالیت دنده له ځان سره لیکي. | ۳۵ |

**۸- د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱- د پراخه طبیعي څرځایونو او چمنونو شتوالی چې د استرالیا د مساحت نږدې په سلو کې ۳۴ برخه یې پوښلي ده، په دې لوی ټاپو کې د مالدارۍ د پراختیا او رواجولو لامل شوی دی.

۲- د معتدله سیمو کرنیز پیداوار عبارت دي له: جوارو، شفتالو، ناکو، او منو څخه چې د تسمانیا ټاپو له جنوب ختیځو څنډو څخه لاس ته راځي.

۳- د استرالیا تر ټولو غوره کرنیز او دمالدارۍ پیداوار وړۍ، غوښې او غنم دي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د آستراليا اقتصاد په بيلابيلو برخو لکه کرنې، مالدارۍ، کانونو، صنايعو او سوداګرۍ کې ډير پر مختګ کړي دی. د کرنې په برخه کې د اوبولګولو او ميکانيزه سيستم ډيره پراختيا موندلې او د نړۍ دغوره غنم توليدوونکو هيوادونو له ډلې څخه شميرل کيږي.

آستراليا د سروزرو، ډبروسکرو، سربو، يورانيمو، مسو، بوکيست او نورو کانونو زيرمې لري، آستراليا د ډيرو کلونو په اوږدو کې پر مالدارۍ ولاړه وه. د موري او ډارلينګ سيندونو په شاوخوا سيموکې د حيواناتو د روزنی لپاره پروښوډکې برابرې سيمې شته دی، چې دا سيمې وروسته د پسونو د روزنی مرکزونه شول او اوس د ۱۷۵ ميلونو په شاوخواکې پسونه په نيوساوت ويلز کې پيدا کيږي.

نن ورځ د رمو د روزنی مرکزونه له دې سيمو څخه د کوينزلند سيمو ته ليږدول شوي دي چې د پسونو سربيره د غواګانو روزنه هم د کوينزلند جنوبي سيمو ته چې لوی سيمه ييز بازارونه لري، غزول شوی ده. د استراليا موقعيت او د پسونو وړيو ته د انګلستان اړتيا پر تيره بيا له هغه وخت راهيسې چې په انګلستان کې د وړۍ او بدلو فابريکو په کار پيل وکړ او له بله پلوه د پسونو غوښې ته اړتيا چې هر وخت د انګلستان لپاره ارزښتناکه وه، په استراليا کې د مالدارۍ د پر مختګ سبب شوی ده.

## د شپږ ویشتم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: (دوه درسي ساعتونه)**

**مضمون: جغرافیا**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د استرالیا کانونه او صنایع | |
| **۲- د زده کـړې مــوخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې دلوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>عمومي موخه: د استرالیا له کانونو او صنایع سره اشنایي.<br>جزئې موخې:<br>– د استرالیا د کانونو له ډولونو سره اشنا شي.<br>– د استرالیا د صنایعو له ډولونو څخه یادونه وکولای شي.<br>– د استرالیا د صنایعو د پر مختګ سره اشنا شي.<br>– د استرالیا دکانونو او لارو په نقشه کې هغه سیمې چې په هغی کې بیلابیل کانونه شتون لري په نښه او وښیي. | |
| **۳- د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، ګروپي او انفرادي کار، بحث، پوښتنه او ځواب | |
| **۴- درسي او مرســتندویه درسي سامانونه او لوازم** | درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، د استرالیا دکانونو او صنایعو نقشه، تختــه، تباشیر، د امکان په صورت کې جغرافیايي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیــوتري سي ډي ګانې او انترنت. | |
| **۵- د ارزونې طریقې:** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د کړنو ارزونه) او عملي کار. | |
| **٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړنۍ کړنې: سلام اچول او د احوال پوښــتنه، دټــولګي برابــرول، د حاضرۍ اخیستل، د تیر لوست ارزونه او له ټولګي څخه بهــر کړنــو د پایلو کتنه او څارنه. | ۱۰ دقیقي |
| | **د انګیزې رامنځته کول (هڅونه) :**<br>په استرالیا کې د کانو او صنایعو حالت څه ډول دی؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (دمطالبو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکود زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – د تیر لوست او نوي لوست تر منځ د اړیکو ټینګول.<br>– د نوی لوست عنوان د تختې پر مخ لیکي.<br>– په کراری سره د نوي لوست د مطالعې سپارښتنه کوي.<br>– د نوي لوست غوره ځایونه د تختې پر مخ لیکي.<br>– د کانو او صنایعو مفهوم روښانه کوي.<br>– د استرالیا کاني سیمې د نقشې پر مخ ښیي.<br>– د لوست د تصویرونو په هکله له زده کونکو سره خبرې کوي.<br>– زده کوونکي په ټولګي کې د د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګروپونو ویشي.<br>– له ګروپي کار څخه څارنه کوي.<br>– له ټولګي څخه د بهر فعالیت د دندې سپارښتنه کوي. | – د نوي لوست اړیکې له تیر لوست سره پیدا کوي.<br>– نوي لوست په چوپه خوله لولی او ستونزمن لغاتونه له ځان سره لیکي.<br>– د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>– نقشې ته ګوری او مطالعه کوي یی.<br>– په ګروپونو کې د ټولګي د ننه فعالیت سرته رسوي.<br>– د لوست د پوښتنو ځوابونه وایي.<br>– خپلې ستونزې حلوي او پوښتنې کوي.<br>– له ټولګي څخه د بهر فعالیت دنده له ځان سره لیکې. | ۳۵ |

**۸– د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– یورانیم د نیوساوت ویلز ایالت په سیمه کې موجود دي.

۲– د اوسپنې کانونه د لویدیځې آسترالیا او جنوبي استرالیا په ایالتونو کې شته.

۳– د استرالیا صنایع زیاتره په هغه سیمو کې واقع دي چې د صنایعو د رامنځته کولو لپاره لومړنی امکانات لري، په تیره بیا هغه ځایونه چې د رانیولو او لګښت پراخه بازارونه ولري لکه: نیوساوت ویلز او نور.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د ۱۹۵۰ لسیزې وروسته ځمکپوهانو د آسترالیا د کاني توکو په کشفولو پیل وکړ او د کانونو کشفول او راویستل ورځ په ورځ ډېره پراختیا مومي. نن ورځ استرالیا په نړۍ کې د کاني توکو د برابرولو او صادرولو یو لوی هیواد شمیرل کیږي. دا هیواد په نړۍ کې د اوسپنې د ډېرو د تولید دویم هیواد دی. همدغه راز په نړۍ کې د بوکسیت د تولید تر ټولو لوی هیواد دی چې د المونیم په جوړولو کې ورڅخه کار اخیستل کیږي. نور کاني توکي چې په استرالیا کې راویستل کیږي عبارت دي له: سرو زرو، نکل، مس، سرب، تیتانیم او په دې ورستیو کې د یورانیمو زیرمې هم ددې هیواد په شمال کې کشف شوي او دا هیواد په نړۍ کې تر امریکا وروسته د یورانیمو سترې زیرمې لري. د استرالیا تر ټولو غوره نفتي سیمه د باس په تړانګه کې پرته ده.

له دویمې نړیوالې جګړې وروسته د استرالیا صنایعو ډیر پر مختګ وکړ. د نوموړي هیواد پخوانۍ صنایع د حیواني توکو پر بنسټ ولاړې وې خو په اوسني وخت کې د مصرفي کالیو او درنو صنایعو چټکه پراختیا لیدل کیږي. د مثال په توګه د ۳۰ وروستیو و کلونو په اوږدوکې ددې هیواد فولاد جوړول څلور ځلې زیات شوي دي. په عمومي توګه د اوسپنې اوفولادو صنایع د استرالیا په نیو ساوت ویلز کې موقعیت لري. له فولادو سربیره د انجنیري او کاغذ جوړولو صنایع، د خوراکي توکو اړونده صنایع، کیمیاوي او دمنسوجاتو دصنایع پراختیا هم تر سترګو کیږي.

کیمیاوي صنایع له سیمه ایزو منابعو لکه ډبرو سکرو، د قندو شیره، مالګه او ګوګړ د چاویدیونکو توکو، پلاستیک او کیمیاوي سرې لپاره اړوند اصلي کیمیاوي توکي برابروي او د سپنسینو ټوکرانو اوبدلو صنایع هم په سیمه ییزو منابعو ولاړې دي.

## د اوه ویشتم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: یو درسي ساعت**

**مضمون: جغرافیا**

| **د مطالبو عنوانونه** | **د مطالبو تشریح** | |
|---|---|---|
| **۱– د لوست موضوع** | مواصلاتي جغرافیه | |
| **۲– د زده کړې موخې (علمـــي، مهـــارتي او ذهنیتي).** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي.<br>عمومي موخه: د استرالیا له مواصلاتی جغرافیي سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>– د استرالیا له مواصلاتو سره اشنا شي.<br>– د استرالیا د هوایي، ځمکني او اوبو ترانسپورت په هکله معلومات لاسته راوړی.<br>– د استرالیا ترانسپورتي لارې د نقشې پر مخ وښود لای شي. | |
| **۳– د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، ګروپي کار، بحث، پوښتنه او ځواب | |
| **۴– درســـــــــي او مرســــتندویه درســـــي سامانونه او لوازم** | درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، د استرالیا مواصلاتی نقشه، تختـــه، تباشـــیر او د امکان په صورت کې جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي ګـــانې او انترنت. | |
| **۵– د ارزونې طریقې:** | شفاهي، کتبي (لنډه ځوابه پوښتنې، د کړنو ارزونه) او عملي کار | |
| **٦– په ټولګي کــې د تدریس او زده کـــړي فعالیتونه** | لومړنی فعالیتونه: د سلام اچول او د احوالـــ پوښـــتنه،د ټـــولګي د نظـــم برابرول، د حاضرۍ او ټولګي بهر کړنو کتنه او د تیر لوست ارزونه. | ۱۰ دقیقي |
| | **د انګیزې رامنځته کول (هڅونه):**<br>د لوست د یوه تصویر ښودنه او د هغه په هکله نظر غوښـــتنه او لانـــدې پوښتنه کول:<br>د استرالیا ځمکني، اوبو او هوایي ترانسپورت په کومه کچه دی؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکود زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقی |
|---|---|---|
| - د نوي لوست عنوان د تختې پر مخ لیکي.<br>- په چوپه خوله د نوي لوست د مطالعې سپارښتنه کوي.<br>- د نوي لوست غوره برخې د تختې پر مخ لیکي.<br>- ستونزمن لغاتونه او اصطلاحات روښانه کوي.<br>- د مواصلاتو مفهوم روښانه کوي.<br>- مواصلاتي مهمې کرښې د استرالیا د مواصلاتي نقشې پر مخ ښیي.<br>- د لوست د تصویرونو په هکله له زده کوونکو سره خبرې کوي.<br>- زده کوونکي د ټولګي د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګروپونو ویشي.<br>- له ټولګي د بهر فعالیت دنده زده کوونکو ته سپاري | - نوي لوست په چوپه خوله مطالعه کوي او ستونزمن لغاتونه او اصطلاحات له ځان سره لیکي.<br>- د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>- نقشې ته ګوري او مطالعه کوي یې.<br>- په ګروپونو کې د ټولګي دننه فعالیت سرته رسوي، یو تر بله مشوره کوي او د بحث پایلې ټولګیوالوته وړاندې کوي.<br>- له ټولګي څخه د بهر فعالیت دنده له ځان سره لیکي. | ۳۵ |

**۸- د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱ - استرالیا بیلابیلې مواصلاتي لارې لکه د اوبو، هوایي او ځمکني (د اوسپنې او موټرو لارې) لري.

۲- په استرالیا کې د ترانسپورت ټولو ډولونو ښه پر مختګ کړی دی خو بیاهم په پرتله ایزه توګه د اوسپنې او اوبو لارې د وړلو او راوړلو لپاره ډیر ارزښت لري.

۳- په استرالیا کې هوایي ترانسپورت د لرې پرتو ښارونو تر منځ ډیر ارزښت لري او ښه پر مختګ یې کړی دی.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

په استراليا کې د ترانسپورت بيلابيل ډولونه لکه هوايي، اوبو او ځمکني (د اورګاډي کرښې او سرکونه)شته.

په استراليا کې پنځه لوی ښارونه سمندري بندرونه دي چې له هغوئ څخه هر يو ديوه ايالت مرکز دی. د استراليا د غوړيدلی (مدنيت) او مدني نفوسو د مرکزيت لامل په بندري ښارونو کې ځانګړی سوداګريز کيفيت دی. په استراليا کې د کليوالو سيمو ګڼ شمير پيداوار د سمندر له لارې ليږل کيږي او د کورنۍ سوداګرۍ پورې اړونـد توکي د ساحلي بيړيو په وسيله له يوه بندر څخه بل بندر ته وړل کيږي. د سوداګريزو مالونو د ليږد په هکله بايد يادونه وکړو چې د سوداګريزو مالونو د ليږد تر ټولو ارزانه لاره د اوبو ترانسپورت دی.

## د اته ویشتم لوست د تدریس د لاربښوونې پلان

**د تدریس موده: دوه درسي ساعتونه**

**مضمون: جغرافیا**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | اقیانوسیه | |
| **۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چه د لوست په پای کې لاندې موخوته ورسیږي<br>عمومي موخه: د اقیانوسیې او د هغې له ټاپوگانو سره اشنایي.<br>جزئې موخې:<br>- د اقیانوسیې د ټاپوگانو له طبیعي بڼې سره اشنایي.<br>- د اقیانوسې د ټاپوگانو له بشري بڼې سره اشنا یي.<br>- د اقیانوسیې مشهور ټاپوگان د نقشې پر مخ وښودلای شي. | |
| **۳- د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، گروپي او انفرادي کار، بحث او پوښتنه او ځواب. | |
| **۴- درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم** | درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، د اقیانوسیې نقشه، تخته، تباشیر، د امکان په صورت کې جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي گانې او انترنت. | |
| **۵- د ارزونې طریقې** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار. | |
| **۶- په ټولگي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړنی فعالیتونه: د سلام اچول او د احوال پوښتنه،د ټولگي د نظم برابرول، د حاضرۍ او له ټولگي څخه بهر فعالیت کتنه او د تیر لوست ارزونه. | **۱۰ دقیقې** |
| | **د انگیزې رامنځته کول (هڅونه):**<br>د ټولگي په مخکې د اقیانوسیې د نقشې ځړول او لاندی پوښتنه کول:<br>د اقیانوسیې ټاپوگان په کوم سمندر کې پراته دي؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدريس فعاليتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکود زده کړې فعاليتونه | وخت په دقيقي |
|---|---|---|
| - د نوي لوست عنوان د تختې پر مخ ليکې.<br>- په چوپه خوله د نوی لوست د مطالعې سپارښتنه کوي.<br>- د نوي لوست غوره ټکي د تختې پر مخ ليکي.<br>- ستونزمن لغاتونه او اصطلاحات روښانه کوي.<br>- د نوي لوست لنډيز روښانه کوي.<br>- د اقيانوسيې د ټاپوګانو موقعيت د نقشې پر مخ ښيي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي د ننه فعاليت د سرته رسول لپاره په ګروپونو ويشي.<br>- له ټولګي څخه د بهر فعاليت سپارښتنه کوي. | - نوي لوست په چوپه خوله مطالعه کوي او ستونزمن لغاتونه له ځان سره ليکي.<br>- د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نيسي.<br>- نقشې ته ګوري او مطالعه کوي يې.<br>- زده‌کوونکي په ګروپونو کې د ټولګي دننه فعاليت سرته رسوي، يو تربله مشوره کوي او دبحث پايلې ټولګيوالوته وړاندې کوي.<br>- زده‌کوونکي د ټولګي بهر فعاليت دنده له ځان سره ليکي. | ۳۵ |

۸- د لوست د پوښتنو ځوابونه:

۱- د اقيانوسيې لوی ټاپوګان عبارت دي له نوی ګينې، نيوزيلاند، د سليمان او فيجی ټاپوګانو څخه.

۲- په عمومي توګه د اقيانوسيې د ټاپوګانو خلک له نژادي پلوه په دريو ګروپونو(ډلو) ويشل کيږي چي عبارت دي له: ملانزيانو، ميکرونزيانو اوپلي نزيانو.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د اقیانوسيي ټاپوګان په دوو ځانګړیو ګروپونو قاره يي او اقیانوسي ویشلای شوو:

قاره يي ټاپوګان: لوړې ژورې او غرني سيمې چې د ژورو اقیانوسی جهیلونو په امتداد له وچو سره موازي پراتــه دي. د ارام سمندر په خواکې يې یو لوی ټاپو را منځته کړی چې اغلباَ د بیلابیلو اورغورځوونکو کړنو له رسوباتو څخه را منځته شوې دی. په دې ټاپوګانو کې د سلیسیم او المونیم درلودونکې ډبرې هم شته. په عمومي توګه قــاره يــي ټاپوګــان پراخه او شمیر يي ډېر او د مرې خاوري درلودونکې وي او نباتي پوښښ يي د اقیانوسيي ټاپوګانو په پرتله ډېر دي.

اقیانوسيي ټاپوګان له ژورو سیمو چې په هغو کې درزونه رامنځته شوي او بزالتی طبقې دباندې خواته نفــوذ کــړی، او سمندري اورغورځوونې يي رامنځته کړي دي. په هغه ځایونو کې چې د یادوشویو اورغورځوونکو څوکې له اوبو څخــه پورته شوې دي، نو ټاپوګان يي را منځته کړي دي. هغه ټاپوګان چې په دې توګه را منځته شــوي دی د ملاتــزي او میکرو نیزیا ټاپوګان يې یوه بیلګه ده چې د اورغورځونکو کړنو په ترڅ کې رامنځته شــوي دي. د هــاوایي د څــوکې لوړوالی چه په واورو پوښل شوې ده، ۴۲۰۰ مترو ته رسیږي. اورغورځوونکې ټاپوګان د اوسپنې د ډبرو او منګنیــزم د اکسایدونو د ډیرو پراخه زیرمو درلودونکې دي او په ځنګلونو پوښلي دي.

ځینې سمندري ټاپوګان د مرجاني منشا درلودونکې وي، له بله پلوه دې مرجانونو د اورغورځوونکو توکو پر مخ ځای نیولی دی خو ددې ټاپوګانو له اوبو څخه بهر برخه د مرجانو په وسیله را منځته شوې ده.

د تودو سیمو د لږو ژورو اوبو مرجانونه خپلوکړنو ته دوام ورکوي او د اورغورځونکو توکو پر مخ او همدغه راز د قاره اي ټاپوګانو پر مخ ځای نیسي او مرجاني ټاپوګان چې د توکو زیاتره برخه يې د اهک له ډبرو څخه ده، را منځته کوي.

## د نه ویشتم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: (یو درسي ساعت )**

**مضمون جغرافیه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشریح | |
|---|---|---|
| **۱- د لوست موضوع** | د اقیانوسیې ټاپوګانو اقتصادي څرنګوالی | |
| **۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنیتي)** | له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي:<br>عمومي موخه: د اقیانوسیې له اقتصادي جغرافیې سره اشنایي.<br>جزئي موخې:<br>- د اقیانوسیې. ټاپوګانو اقتصادي بڼه تفسیر او بیان کړای شي.<br>- د اقیانوسیې ټاپوګانو له کرنیزو پیداوار سره اشنا شي.<br>- د اقیانوسیې له لیږد رالیږد سره اشنایي پیدا کړي. | |
| **۳- د تدریس میتودونه** | د لوست توضیح، ګروپي او انفرادي کار، بحث، پوښتنه او ځواب. | |
| **۴- درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم** | درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، د اقیانوسیې نقشه، تخته، تباشیر او د امکان په صورت کې جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي ګانې او انترنت. | |
| **۵- د ارزونې طریقې:** | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار. | |
| **٦- په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه** | لومړني فعالیتونه: د سلام اچول او د احوال پوښتنه،د ټولګي د نظم برابرول، د حاضرۍ اخیستل، له ټولګي څخه بهر فعالیتونو کتنه او د تیر لوست ارزونه. | ۱۰ دقیقې |
| | د انګیزې رامنځته کول (هڅونه):<br>په تصویرونو کې څه شي وینئ؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکو د زده کړې فعالیتونه | وخت په دقیقو |
|---|---|---|
| – د نوي لوست عنوان د تختې پر مخ لیکي.<br>– په چوپه خوله د نوي لوست د مطالعې سپارښتنه کوي.<br>– د نوي لوست غوره ټکې د تختې پر مخ لیکي.<br>– ستونزمن لغاتونه او اصطلاحات روښانه کوي.<br>– د اقیانوسیې ټاپوګانو د کرنې، کانونو، صنایعو، سوداګرۍ او لارو په هکله معلومات ورکوي.<br>– زده‌کوونکي د ټولګي د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګروپونو ویشي.<br>– له ټولګي څخه د بهر فعالیت د دندې سپارښتنه کوي. | – نوي لوست په چوپه خوله مطالعه کوي او ستونزمن لغاتونه او اصطلاحات له ځان سره لیکي.<br>– د ښوونکې لارښوونو ته غوږ نیسي.<br>– په ګروپونو کې د ټولګي د ننه فعالیت سرته رسوي، یوتربله مشوره کوي او پایلې ټولګیوالوته وړاندې کوي.<br>– له ټولګي څخه بهر فعالیت دنده له ځان سره لیکي او سرته یې رسوی. | ۳۵ |

**۸. د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– د اقیانوسیې ځانګړي کرنیز پیداوار له ناریا ل، کیلې، د ډوډۍ دونومیوی، کاکاؤ مرچ او قهوی څخه عبارت دي.

۲– د اقیانوسیې د ټاپوګانو مشهور کانی توکي عبارت دي له فسفات، نکل، کروم، اوسپنې، کوبالت، منګنیز، طلا او مسو څخه.

۳– کرنیز پیداوار د اقیانوسیې د ټاپوګانو د صنایعو بنسټ جوړوي. د غوړیو ناریا ل، صابون، بوره او کنسروه له دغه ډلې څخه شمیرل کیږي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

د اقیانوسیې ټاپوګانو په ټولو برخو په ځانګړې توګه کرنې، کانونو، صنایعو،توریزم اوحمل ونقل کې ډیر پرمختګ کړی دی. د کرنې په برخه کې مشهور کرنیز پیداوار له نار یال، کیلې او د ډوډۍ د ونو میوې چې د ونو د پیداوارو له ډلې څخه دي ګڼل کیږی. په هر ځای کې دخلکوژوند د کرنې له لارې اداره کیږي او تر ټولو غوره حاصل د ځمکنۍ خوړې منې ریښه ده.

د اورغورځونکي ټاپوګانو د ځمکو پیداوار له مرجاني ټاپوګانو څخه توپیر لري. د اقیانوسیې ټاپوګانو په ټولو ځایونوکې پخوانۍ کرنه رواج لري او کورنۍ په خپلو سیمو کې د کب نیولو حق هم لري.

د ټولو ټاپوګانو یواځیني صادراتي توکي له کوپرا (د ناریا ل مغز) څخه عبارت دی چې د ناریا ل له غوړیو څخه د نباتي غوړیو او صابون په جوړولوکې کار اخیستل کیږي. د ناریا ل غوړي او کیلې بهر هیوادونو ته هم لیږل کیږي. د کاکاؤ، تورو مرچو او قهوې کښت هم د عاید یوه منبع ګڼل کیږي.

اقیانوسیې په ټاپوګانو کې د فسفات، نکل، کروم، اوسپنې، منګنیز او سرو زرو کاني زیرمې او د نړۍ تر ټولو لوی د مسو کان شته.

د اقیانوسیې ټاپوګانو مشهوری صنایع چې په کرنیزو توکو باندې تکیه لري د ناریا ل غوړي، صابون، بوره او کمپوت جوړونې او اره کولو کارخانې او نورې دي.

دګرځندوی (توریزم) صنعت چې د ۱۹۵۰م کلونو په پیل کې د لویو مسافر وړونکو جیټ الوتکو له الوتنې سره پیل شو، د اقیانوسیې په ټاپوګانو کې یې هم وده وکړه او د ګرځندوی په ودې سره هوایي میدانونو، مغازو او هوټلونو پراختیا ومونده. په اوسني وخت کې د اقیانوسیې ټاپوګانو خلک یو له بل او نړیوالو سره د اړیکو لپاره له بیړیو او الوتکو څخه ګټه اخلي. بیړۍ د بیلابیلو ظرفیتنو په درلودلو سره لوی او کوچني بندرونه سره یوځای کوي او الوتکې د مسافرتونو او مالونو په ځای پرځای کولو کې ځانګړې ارزښت لري.

## د دیرشم لوست د تدریس د لارښوونې پلان

**د تدریس موده: (یو درسي ساعت )**

**مضمون جغرافیا**

<table>
<tr><th>د مطالبو عنوانونه</th><th colspan="2">د مطالبو تشریح</th></tr>
<tr><td>۱− د لوست موضوع</td><td colspan="2">نیوزیلاند</td></tr>
<tr><td>۲− د زده کړې موخې<br>(علمي، مهارتي او ذهنيتي)</td><td colspan="2">له زده کوونکو څخه هیله کیږي چې د لوست په پای کې لاندې موخې تر لاسه کړي:<br>عمومي موخه: د نیوزیلاند هیواد سره اشایي.<br>جزئي موخې:<br>− د نیوزیلاند له جغرافیایي موقعیت سره اشاشي.<br>− د نیوزیلاند له طبیعي، بشري او اقتصادي حالت سره اشناشي.<br>− د نیوزیلاند مشهور غرونه اوسیندونه د نقشې پر مخ وښودلای شي.</td></tr>
<tr><td>۳− د تدریس میتودونه</td><td colspan="2">د لوست توضیح، ګروپي کار، بحث او پوښتنه او ځواب.</td></tr>
<tr><td>۴− درسي او مرستندویه درسي سامانونه او لوازم</td><td colspan="2">درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، اقیانوسیه او د نیوزیلاند نقشه، تخته، تباشیر، او د امکان په صورت کې جغرافیایي ویدیویي او تلویزیوني فلمونه، کمپیوتري سي ډي ګانې او انترنت.</td></tr>
<tr><td>۵− د ارزونې طریقې:</td><td colspan="2">شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د فعالیتونو ارزونه) او عملي کار.</td></tr>
<tr><td rowspan="2">۶− په ټولګي کې د تدریس او زده کړې فعالیتونه</td><td>لومړنی فعالیتونه: د سلام اچول او د احوال پوښتنه،د ټولګي د نظم برابرول، د حاضرۍ او له ټولګي څخه بهر فعالیت کتنه او د تیر لوست ارزونه.</td><td>۱۰ دقیقې</td></tr>
<tr><td>د انګیزې را منځته کول( هڅونه) :<br>د ټولګي مخ ته د نیوزیلاند د نقشې ځړول او لاندې پوښتنه کول:<br>نیوزیلاند د ځمکې دکرې په کومه برخه کې موقعیت لري؟</td><td></td></tr>
</table>

| وخته په دقیقي | د زده کوونکود زده کړې فعالیتونه | ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) |
|---|---|---|
| ۳۵ | – نوي لوست په کراره مطالعه کوي او ستونزمن لغاتونه له ځان سره لیکي.<br>– دښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>– نقشې ته گورى او هغه مطالعه کوي.<br>– پوښتنو ته ځواب ورکوي او خپلې ستونزې او پوښتنې کوي.<br>– زده‌کوونکي په گروپونو کې د ټولگي د ننه فعالیت سرته رسوی، یو تربله مشوره کوي اود بحث پایلې ټولگیوالوته وړاندې کوي.<br>– زده‌کوونکي له ټولگي څخه بهر فعالیت دنده له ځان سره لیکي. | – د نوي لوست عنوان د تختې پر مخ لیکې.<br>– په چوپه خوله د نوي لوست د مطالعې سپارښتنه کوي.<br>– د نیوزیلاند موقعیت، غرونه او مشهور سیندونه په نقشه کې په نښه کړي.<br>– د زده کوونکو پوښتنو ته ځواب ورکوي.<br>– زده‌کوونکي د ټولگي د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په گروپونو ویشي.<br>– له ټولگي څخه د بهر فعالیت سپارښتنه کوي. |

**۸– د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– نیوزیلاند د دوه لویو ټاپوگانو څخه رامنځته شوې دی چې د شمالي ټاپو او جنوبي ټاپو په نومونو یادیږي.

۲– د نیوزیلاند د نفوسو ډیره برخه په شمالي ټاپو کې ژوند کوي.

۳– د نیوزیلاند غوره کرنیز پیداوار غنم، اوربشې، جودر او د حیواناتو (واښه او خواړه ) دي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

نیوزیلاند غرنۍ هیواد دی. په جنوبي ټاپو کې ځینې لوړې څوکې د استرالیا د غرونو په پرتله دوه ځلې لـــوړې دي. شمالي ټاپو یو اورغورځونکي ټاپودی او د ځمکې برخه یې له اورغورځونکو توکو څخه جوړه ده، تـــر ټولـــو لـــوړه څوکه یې کوک نومیږي چې د ۳۷۰۰ مترو په شاوخواکې لوړوالی لري. ځینې څوکې یې اوس هم فعالې دي، زیـــاتره سیمه په اورغورځونکو شیستونو سره پوښل شوې ده او د تودو اوبو ګڼ شمیر چینې په سیمه کې لیدل کیـــږي چـــې د ځینو چینو اوبه د ایشیدو تر کچې رسیږي.

د استرالیا پر خلاف، نیوزیلاند یوه باراني سیمه ده، د شمالي ټاپو په ټولو برخو کې د اورښت کلنۍ منځنۍ کچه لـــه ۷۰۰ څخه تر ۱۵۰۰ ملي مترو پورې ده.

جنوبي ټاپو له هغه غرونو سره سره چې له شمال څخه د جنوب پر لوري غځېدلي دي، تـــوپیر لـــري. ددې ســـیمې لودیځه لمنه په پرتله ییزه توګه ډېر باران او یوازې د کانتربوري او اتاګو مرکزي سیمه له ۵۰۰ څخه تر ۷۰۰ ملـــي مترو پورې کلنی اورښت لري چې د نورو سیمو په پرتله لږ دی.

## د يو ديرشم لوست د تدريس دلارښوونې پلان

**د تدريس موده: (دوه ساعتونه )**

**مضمون جغرافيه**

| د مطالبو عنوانونه | د مطالبو تشريح | |
|---|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | انتارکتيکا (جنوبي قطب) | |
| ۲- د زده کړې موخې (علمي، مهارتي او ذهنيتي) | له زده کونکو څخه هيله ده چې د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>عمومي موخه: له انتارکتيکا (جنوبي قطب) سره اشنايي.<br>جزئي موخې:<br>- د انتارکتيکا له جغرافيايي موقعيت سره اشنايي.<br>- د انتارکتيکا دلويې وچې له جغرافيايي کشفياتو سره اشنايي.<br>- د انتارکتيکا د وچې له طبيعي حالت سره اشناشي.<br>- په نقشه کې انتارکتيکا (جنوبي قطب) وښودلای شي. | |
| ۳- د تدريس ميتودونه | د لوست توضيح، گروپي او نفرادې کار، بحث، پوښتنه او ځواب. | |
| ۴- درسي او مرستندويه درسي سامانونه او لوازم | درسي کتاب، د ښوونکي لارښود کتاب، اقيانوسيه او انتارکتيکا نقشه، تخته، تباشير، او د امکان په صورت کې جغرافيايي ويديويي او تلويزيوني فلمونه کمپيوتري سي ډي گانې او انترنت. | |
| ۵- د ارزونې طريقې: | شفاهي، کتبي (لنډ ځوابه پوښتنې، د فعاليت ارزونه) او عملي کار. | |
| ۶- په ټولگي کې د تدريس او زده کړې فعاليتونه | لومړنۍ کړنې: سلام اچول او د احوال پوښتنه، د ټولگي د نظم برابرول، حاضرۍ اخيستل، د تير لوست ارزونه او له ټولگي څخه بهر فعاليت کتنه. | ۱۰ دقيقې |
| | د انگيزې را منځته کول( هڅونه):<br>د انتارکتيکا نقشه د ټولگي مخې ته وځړول شي او لاندې پوښتنه وشي:<br>انتارکتيکا په څه ډول کشف شوه؟ | |

| ۷ د ښوونکي د تدریس فعالیتونه (د مطالبو زده کړه او ارزونه) | د زده کوونکود زده کړې فعالیتونه | وخته په دقیقي |
|---|---|---|
| – د نوي لوست عنوان د تختې پر مخ لیکل.<br>– په چوپه خوله د نوي لوست دلوستلوسپارښتنه کوي.<br>– د نوي لوست غوره برخې د تختې پر مخ لیکي.<br>– ستونزمن لغاتونه او اصطلاحات روښانه کوي.<br>– د نوي لوست مفهوم روښانه کوي.<br>– په نقشه کې انتارکیتکا په نښه کوي.<br>– د لوست پوښتنې کوي.<br>– زده کوونکي د ټولګي د ننه فعالیت د سرته رسولو لپاره په ګروپونو ویشي.<br>– له ټولګي څخه بهر فعالیت د دندې د سرته رسولو سپارښتنه کوي. | – په چوپه خوله نوي لوست مطالعه کوي او ستونزمن لغاتونه او اصطلاحات له ځان سره لیکي.<br>– د ښوونکي معلوماتو ته غوږ نیسي.<br>– نقشې ته ګوری او مطالعه کوي یې.<br>– پوښتنو ته ځواب ورکوي اوخپلې ستونزې او پوښتنې وړاندې کوي.<br>– زده کوونکي په ګروپونو کې د ټولګي د ننه فعالیت سرته رسوی، یو تربله مشوره کوي اود بحث پایلی ټولګیوالوته وړاندې کوي.<br>– زده کوونکي د ټولګي د ننه فعالیت دنده له ځان سره لیکي. | ۳۵ |

**۸– د لوست د پوښتنو ځوابونه:**

۱– انتارکتیکا په جنوبي قطب کې موقعیت لري او د دریو سمندرونو یعنې ارام، اتلانتیک اوهند په وسیله احاطه شوی ده.

۲– د انتارکتیکا کشفونکی : د انګلستان د سمندری قواوو یو افسر چې جیمز کوک نومیده وکولای شول چې تر ډیر زیار وروسته خپل ځان انتارکتیکا ته ورسوی او رپوټ یې ورکړ چې ان هیڅ حیوان نشي کولای چې په دغه کنګلونو کې ژوند وکړي. پنځوس کاله وروسته په ۱۸۱۸م کال کې یو امریکایي سمندري ګرځندوی چې د جنوبي امریکا (ارجنتاین) اوسیدونکي و، وکولای شول چې خپل ځان د جنوبي قطب تر ټولو نږدې نقطې ته ورسوي. وروسته یوه انګلیسي روبرت فالکن سکات او نارویژی روالداموندسن په دې کشفولو کې برخه واخیسته.

۳– جنوبي قطب ډیرسوړ اقلیم لري، په ژمی کې د هوا د تودوخې درجه د سانتی ګرید تر منفی ۸۹ درجو رسیږي. په دې وچه کې هیڅ ډول نباتات نشي شنه کیدلی. د نوموړی وچې په ځینو برخو کې یو ډول نبات چې د ډبري ګل (ګل سنګ) نومیږي تر سترګو کیږي. د جنوبي قطب په څنډو کې د سمندری حیواناتو ځینې ډولونه هم ژوند کوي.

۴– هغه څیړنې چې د انتارکتیکا د کانونو په هکله سرته رسیدلی دي دا جوتوي چې په انتارکتیکا کې د اوسپنې، ډبروسکرو، نفتو او ګازو او نورو کانی توکو د پام وړ زیرمې پرتې دي چې د راویستلو لپاره یې د ډیر لګښت له امله د اوس لپاره کومه علاقه نه لیدل کیږي.

**۹ – د ښوونکي لپاره اضافي معلومات:**

انتارکتیکا د ځمکې دکرې جنوبي قطب دی. دا برخه د طبیعي شرایطو له مخې د ځمکې کرې تر ټولو سړه برخه شمیرل کیږي او د ځینو ټاپوګانو پرته همیشنی نفوس نه لري.

انتارکتیکا د نړۍ له نورو وچو څخه ډیر وروسته کشف شوی ده، خو د هغی د شته والي په هکله په منځنیو پیړیو کې هم جغرافیه پوهانو او سمندر ګرځندویانو فرضیي وړاندې کړي وی. د لومړي ځل لپاره ددې وچې ټاپوګان او بیلابیل ساحلونه د یوه څیړنیز سفر پر ترڅ کې روسي سمندر ګرځیدویانو په ۱۸۱۹–۱۸۲۱ میلادې کلونو کې د ف.ن. بیلینسګا او م.پ. لازاروف په لارښوونه وکتل.

په وروستیو لسیزو کې انتارکتیکا د څیړونکو او سمندر پیژندونکو ځانګړی پاملرنه دیوه علمی ناحله ستونزې او همدغه راز د اوبو د یوې غني سیمې په توګه ځان ته را ګرځولې ده.